بسم الله الرحمن الرحيم


## د کتاب ځانګړنې

**د کتاب نوم : دين ، ژبه او ملت.**

ليکوال : مبارز "څاپی".

خپرندوی : د پښتونخوا د پوهنې دېره پېښور

چاپ شمېر : **1000** ټوکه.

چاپ نېټه : ۱۳۸۳ ل/ ۲۰۰۴ ع.

کمپوزګر : حاجي محمد "عمرخېل".

**چاپ او کمپيوټر ځای**

د دانش خپرندويې ټولنې تخنيکي څانګه

قصه خوانی بازار، پېښور **Tel/ Fax: 2564513**

**E-mail: danish2k2000@yahoo.com**

# ډالۍ

*هغه چا ته* چې: حق پالي او د واقعیتونو له لمانځنې ډډه کوي.
هغه چا ته چې: د دین پر اصولو معتقد وي نه د مذهب پر دستورونو.
*هغه چا ته* چې: خپلې ژبې ته لکه د اسمانونو ، ځمکې او انسانانو د رنګونو د اختلاف په څېر ، چې د
لوی څښتن د قدرت د خلقت ستري نښې ګڼل کېږي درناوی ولري.
*هغه چا ته* چې: پر خپل هېواد ، پر خپل ولس او پر خپل فرهنګ مین وي.

## او

*هغه چا* ته چې: د ښځې او نر ترمنځ د حقوقو هېڅ توپیر نه ویني.

*په خورا مینه او درناوي.*

***مبارز "څاپې"***

# لړلیک



## لومړۍ برخه



## دویمه برخه



## دریمه برخه

## څلورمه برخه

بسم الله الرحمن الرحیم

# تقریظ

## لنډه کتنه، تبصره او وړاندیزونه

د ښاغلي محترم (مبارز ځاپي) صاحب رساله چې د (دین، ژبه او ملت) تر سرخط او عنوان لاندې یې لیکلې، په غور او دقت سره مې ولوستله، او هم مې د (ښاغلو سرباز صافي صاحب او زلمي مومند صاحب) لیکونه، چې د مبارز صاحب د مقالې په ځواب کې یې د دعوت جریدې ته استولي په زیات اهتمام سره مطالعه کړل؛ نو بیا ماته هم دا فکر پیدا شو، چې په دې هکله او اړوند زه هم څه ولیکم ځکه دا موضوع ډېره جالبه، مهمه، په زړه پورې او په نسبي توګه بکر او تازه بحث او څېړنه ده؛ نو بیا مې له څه سوچ او فکر کولو وروسته دا ښه وګڼله، چې د دې رسالې د عمومي مطالبو او مندرجاتو په نظر کې نیولو سره ځینې وړاندیزونه په لنډه او اجمالي توګه ښاغلي مبارز صاحب ته عرض کړم:

**(1)** څرنګه چې د دې رسالې زیاته برخه د دعوت په جریده کې خپره شوې؛ نو ښایي دوهم ځل خپرونه به یې (تحصیل حاصل) وي.

**(2)** دا موضوع او په همدې توګه ځینې نور مباحث او موضوعات ډېر جالب، جاذب؛ خو زیات حاد، بغرنج او راپاروونکي دي.

**(3)** د ښاغلي مبارز صاحب لیکنه ډېره سلیسه، روانه، ادبي، عام فهمه او د مطالبو په راغونډولو او تحلیل کې یې ډېر زیار ایستلی دی.

**(4)** محترم ځاپی د ګران هېواد افغانستان یو مشهور شاعر، لیکوال، ادیب، مسلمان، متدین او په اسلام، وطن او پرګنو مین ملي شخصیت دی، هغه تر اوسه زیات شمېر کتابونه چاپ او هم یې ډېرې مقالې په مختلفو جریدو، ورځپاڼو او مجلو کې خپرې کړې دي. ښاغلی مبارز تر وسه وسه زیار باسي تر څو له مختلفو لارو خپل دین، وطن، کلتور، ژبې، فرهنګ او مقدساتو ته خدمت وکړي، او په دې سپېڅلې او منلې شوې لاره کې یې له یو لړ اقتصادي، سیاسي او ټولنیزو ستونزو او غمیزو سره سره اوچت ګامونه اخیستي او زیات کار یې کړی.

**(5)** څرنګه چې د اسلامي علومو او دراساتو ساحه ډېره ارته، علمي، تاریخي او فرهنګي ده، او له بلې خوا د دې څانګو او عناوینو په سر کې تعبدي اصول او احکام ځای لري؛ نو هر یو لیکوال په خپل مضمون کې د موضوع یو اړخ له یوې زاویې څخه څېړلی دی، چې په مجموع کې د ټولو مقالو مندرجات او محتویات د زیاتې پاملرنې وړ دي؛ خو ځینې لیکوالان د دې پر ځای، چې په ښاغلي مبارز صاحب د کفر او انحراف ټاپې په اشاره او طنز کې ووهي ښه او معقوله به دا وه، چې د مقالې له خپرېدو مخکې یې له هغه څخه د داسې مطالبو په اړه توضیح غوښتې

وای، ځکه ديني احکام حکم کوي او وايي چې: "يو مسلمان په يوه ګناه مه کافر کوئ او له اسلام څخه يې مه باسئ ". حال دا چې ښاغلي مبارز کوم جرم او ګناه نه ده کړې بلکې د الهي متبرکه آياتونو په رڼا کې يې ځينې موضوعات تحليل او بررسي کړي دي. او له بلې خوا ښاغلی څاپي يو متدين، مجاهد ، پوه او په اسلامي احکامو او د ساتيرو ټينګ ولاړ ديني او ملي شخصيت دی؛ نو داسې مسايل او موضوعات ددې پر ځای چې د منازعې، مشاجرې او مخاصمې له لارې وربانديې بحث او څېړنه وشي ښه به دا وي، چې د مذاکرې او تفاهم له لارې د اسلامي ورورۍ او ديني اصولو او ارزښتونو په بنا بې له توهين او تحقير څخه وربانديې ريسرچ وشي. لکه چې امام اعظم صاحب(رح) د حج په سفر کې د ډېرو مذاهبو او فرقو له مشرانو او خاوندانو سره په ډېره حوصله او سړه سينه بحث وکړ او هغوی يې قانع کړل.

**(6)** څرنګه چې ددې موضوع زياتې مقالې د دعوت په خپرونه کې نشر شوې دي؛ نو زما په نظر ښه به دا وي، چې د ښاغلي مبارز صاحب پاتې مقالې او ريسرچ او خصوصاً (18) سوالونه د دعوت په اخبار او يا په بله خپرونه کې نشر او بيا د مختلفو پوهانو او عالمانو معلومات تر لاسه، او له هغه وروسته که چېرې لازم يې وګڼي له يو لړ بدلونونو او حذفياتو وروسته دې چاپ او خپور شي، دا به ښه وي.

**(7)** زما په نظر د نړۍ سيمې او خصوصاً د اسلامي هېوادونو او مذهبي ګوندونو او جريانونو د کړنلارې او پاليسۍ په نظر کې نيولو سره ددې پر ځای چې د داسې موضوعګانو خپرول د افغانانو او خصوصاً د پښتنو تر منځ اتحاد او اتفاق راولي، تضادونه او بېلتونونه زېږوي، چې البته ښکاره مثال يې په لومړي قدم کې همدې د دوو پښتنو عکس العمل دی. له بلې خوا د هېواد په دننه او همدغه شان په سيمه او نړۍ کې د (ملت، مليت، ناسيوناليزم، نيشنليزم، دين او ژبې) آواز پورته کول زيات دښمنان او مخالفان لري او هغوی تر وسه وسه زيار باسي، چې دا آوازونه او غورځنګونه له مختلفو لارو وټکوي او غلي يې کړي. ځکه دا حساسې او مهمې موضوعګانې دي. وګورئ دا زموږ د پښتنو څومره بدبختي او کمزوري ده، چې خپل ملي مشران او پوهان په يو نوم او بل نوم ټکوو او د هغوی په اړه ډول ډول منفي تبصرې او خبرې کوو د مثال په توګه (خان عبدالغفار خان) چې (32) کاله يې د پښتنو په غم او وير کې زندانونه او جېلونه وګالل او د هغوی د حقوقو د تامين آواز يې پورته کړ او شپه او ورځ يې زيار وايست چې پښتانه د اسلامي، ملي او بين المللي اصولو په استفادې سره د خپلواکۍ او آزاد ژوند خاوندان شي؛ خو له بده مرغه، چې نن يې يو شمېر مزدور او اجير کسان غندي او ورپسې پروپاګندونه کوي حال دا چې پنجابيان او نور قومونه محمدعلي جناح ملي قايد بولي، احترام او نمانځنه يې کوي او همدغه شان ګاندي ته زيات احترام او ارادت لري، او په همدې ترتيب د نړۍ په نورو هېوادونو کې ملي قايدين او زعيمان د احترام او قدر وړ شخصيتونه بولي.

**(8)** ښاغلي مومند په خپله مقاله کې د (رباني او مسعود ) تعصب او تنګ نظري ياده کړې او

لیکلي یې دي، چې رباني د ایران پلاوي ته ویلي دي، چې زما سره تعاون وکړئ تر څو دوه کاله نور هم پاتې شم؛ نو دا پاتې پښتانه به هم له کابل نه وکاږم. او یا دا چې د ازبک هیئت د سوال په ځواب کې یې ویلي دي، چې پښتانه یو قوم دی، چې اصلاً د هندوستان څخه را مهاجر شوي دي. حال دا چې رباني او مسعود دواړه ځانونه مسلمانان او د حسن البنا، مودودي، محمد قطب او سید قطب د لارې کلک اخوانیان بولي؛ خو له خپل قوم، ژبې، نژاد او کلتور څخه په کلکه ملاتړ کوي او همدا سبب دی، چې دوی پخوا هم واک او قدرت په لاس کې درلود او اوس هم په حکومت او ملت کې مطرح دي، حال دا چې د پښتنو کینې اړخي زمامداران لکه (تره کی، امین او نجیب) او ښي اړخي مشران لکه (حکمتیار، ملا محمد عمر) چې دوی ته قوم، ژبې، نژاد او نورو معیارونو ازرښت نه درلود له ټول واک او ځواک سره سره له منځه ولاړل. ځکه دوی نشنلیزم او ناسیونالیزم په کلکه سره غانده. که چېرې نیشنلیزم، ناسیونالیزم، ژبه او نور ملي معیارونه او اصول د اسلام د سپېڅلي دین سره منافات او مغایرت لري؛ نو بیا ولې دوی د جمعیت له ګروپ سره، چې په دوی کې دا صفات او خصایل په افراطي توګه وجود لري یو ځای او د هغوی قسم ورکولو ته حاضر شول؟ او هغوی ته یې ورونه وویل. او اوس هم د دوی تر څنګ په مرئي او غیر مرئي توګه حرکت او فعالیت کوي.

دا چې ښاغلي مومند لیکلي، چې طالبان نشنالستان وو غلطه خبره ده، ځکه هغوی د نشنلیزم ډېر کلک مخالفین او دښمنان وو، دا چې دوی زیاتره په پښتو ژبه خبرې کولې علت یې دا و، چې د دوی بله ژبه زده نه وه. د پښتنو سیمو او سېډونکو له دوی سره د پښتو او پښتونولۍ په حساب ډېرې ځاني او مالي مرستې وکړې او حتی ټولې وسلې یې ورته وسپارلې؛ خو دوی ورسره جفا وکړه او همدا اوس هم پښتانه د دوی د تورو کړو، وړو له کبله ځورول کېږي، کورونه یې لټول کېږي او په ډله ایزه توګه وژل کېږي. لنډه دا چې که چېرې دا دي دوو لیکوالانو په هره جمله او پاراګراف بحث او څېړنه وکړو په نتیجه کې به یو بل کتاب منځ ته راشي.

**(9)** د ملتونو او قومونو لوړوالی او جګوالی تعصب او پاشیستي نه ده، ځکه څښتن تعالی بني اسرائیلو ته فرمایي: "چې موږ تاسو ته د نړۍ په نورو انسانانو فضیلت درکړ". او همدغه شان الله تعالی په قران کریم کې فرمایي چې: "تاسې مسلمانان بهترین امت یاست چې د خلکو د لارښوني لپاره راوتلي یاست". ښاغلي مومند په خپله اوږده مقاله کې ځیني دلایل ذکر کړي، چې د هغو متبرکه آیاتونو شان نزول او محتویاتو له موضوع سره اړخ نه لګوي. له بلې خوا مومند صاحب د ځیني کسانو او هېوادونو لکه (هتلر، لېنن، امریکا، انګلیس، اسرائیل) او د ځیني نورو یادونه کړې ده؛ خو په دې هکله ویلی شو، چې دوی له خپل نشنلیزم او ناسیونالیزم څخه کار واخیست او خپل هېواد یې د ترقۍ او پرمختګ لوړې درجې ته ورساوه، چې نن په اسلامي ملکونو باندې جابرانه او ظالمانه سرداري او باداري کوي او موږ په غرونو او رغونو

کې نه پرېږدي کورونه او جېبونه مو لټوي او هر څه، چې غواړي هغه راباندې اجرا کوي...

(10) لکه چې وويل شول اسلامي احکام او د ساتیرۀ بر جامع او په نړۍ کې وربانديې په زرونو کتابونه، مقالې، او رسالې ليکل شوې او هر عالم او مجتهد د خپلې پوهې، کفايت او درايت په اندازه ورڅخه ګټه تر لاسه کړې او غامض موضوعات يې څېړلي دي. نو دا چې ښاغلی (مبارز) هم په دې هکله يو لړ مطالب راغونډ کړي او پر هغه يې رڼا اچولې ده د هغه زيار او هلې ځلې د زيات قدر او ستايني وړ دي څښتن تعالی دې محترم څاپي صاحب ته زيات برياليتوبونه په نصيب کړي، چې په دې اړوند او يا د نورو موضوعاتو په ارتباط نورې رسالې، مقالې او کتابونه وليکي او د پښتو ملي ژبه غني او بډايه وګرځوي.

(11) که چېرې دا رساله په دې بڼه او شکل سره چاپېږي په حقيقت کې مبارز صاحب د هغو مقالو او مضامينو له خپرېدو سره مرسته کوي، چې د نشنليزم او ناسيوناليزم او خصوصاً د هغه پر خلاف چې په تنګ او محدود چوکاټ کې په طنز او اشاره ليکل شوي دي. او البته ښاغلی مبارز صاحب هېڅ ضرورت او اړتيا نه لري، چې هغه زيات تکثير کړي.

په درناوي

*آزاد ليکوال (عبدالمحمد مموزی)*
*د سنګر او سهار د آزادو اخبارونو*
*موسس او چلوونکی په المان کې.*
*مموزی*

# ملت، ملیت، ناسیون، نېشن، ناسیونالیزم یا نیشنلیزم

*الف :* د "ملت" یا "ملیت" توری یا غونډلی په اصالت کې د عربي ژبې په ببخ او ریښې پوري نښلي. وګورئ دغه د ملت توری یو نیم زر کاله مخکې په قرآن کریم کې څو څو ځله استعمال شوی دی.

(1) د البقرآ سورآ په 148 آیت کې چې وايي: هر ملت ته جدا قبله ټاکل شوې ده.

(2) د آل عمران په 95 آیت کې چې د ابراهیمي حنیف ملت په هکله رونبانه هدایت لري.

*ب :* *"Nation"* دغه نومنیزه توری په فرانسوي او جرمني ژبو کې د "ناسیون" په غریزه توګه تلفظ کېږي؛ خو په انګلیسي ژبه کې

(یو)

د "نېشن" په شکل مګر په دواړو حالاتو کې ددغه توري اصالت د لاتیني ژبې ببخ او ریښه لري، چې په لیک دود او معنی کې یې هېڅ کوم توپیر نشته دی.

*ج :* نیشنلیزم یا ناسیونالیزم، چې د لاتیني ژبې د *"Nation"* په توري پورې تړاو لري، د لویدیځې نړۍ مال دی. مګر "ملت پالنه" یا "ملیت پالنه" د ختیځو ولسونو مال ګڼل کېږي.

*د:* د *"Nation"* کلیمه، چې له لویدیځ نه ختیځ ته راغلې په ختیځ کې ددې کلیمې لپاره د "ملیت" کلیمه استعمال شوې ده. اګر چې د ملیت توری د *"Nation"* تحت اللفظي معنی نه افاده کوي، ځکه چې "ملیت" د "مسلک"، "ایډیالوژۍ" او "فکر" په معنی په شرقي ادبیاتو کې استعمال شوی توری دی. او "ملت" د هغو خلکو مجموعې ته ویل کېږي، چې د مسلک، عقایدو او فکر کولو په اصولو سره یو ځای شوي وي. یا هغه خلک دي، چې په پورتنیو ګډو مفاهیمو کې شریک وي. سره له دې، چې د "ملت" توری عربي دی خو عربو د *"Nation"* لپاره د شعب کلیمه استعمال کړې ده، چې معنی یې "شکل"، "فورم" دی، چې "شعبي"، "تشعب" او د "انشعاب" سره شریکه ریښه لري. په دې معنی، چې "ناسیون" یا "نېشن" د انساني کتلې یوه ځانګه ده، دلته خپله څرګندېږي، چې "ناسیون"، "شعب" او "ملیت" د یوه مفهوم لپاره درې مختلې اصطلاح ګانې استعمال شوې دي، چې په لاتیني ژبه کې "نژاد" په عربۍ کې "شکل"، "فورم" او په ایران، افغانستان او ځینې نورو شرقي هېوادونو

(دوه)

کې "فرهنګ" او "روح" یا د افرادو معنوي خصوصیات "محتوا" د اساس په شکل منل شوي دي. په شرق کې د ملیت د اصالت مکتب په دې هکله د غربي طرز تفکر سره تفاوت لري."[1]

---

*1) استعمار او ناسیونالیزم 64 مخ، لیکوال استانه ګل "شبرزاد".*

*(درې)*

ددغو پورتنیو لنډو معلوماتي څرګندونو سره جوخت غواړم د دعوت په خپرونه کې زما د "هر دین په خپل بنسټ کې نېشنلیزم دی" مضمون او د هغه په هکله چې کوم غبرګونونه رامنځته شوي دي په دوو برخو کې خپلو ګرانو لوستونکیو ته کټ مټ وړاندې کوم. یعنې لومړۍ برخه کې د لیک او د لیک په هکله غبرګونونه او دویمه برخه یې د غبرګونونو په هکله څېړنیزې څرګندونې دي، چې د قرآني آیتونو د ترجمو او تفسیرونو سره یو ځای وړاندې شوي دي.

په خورا درناوي
مبارز "څاپی"
بن، جرمني

# هر دین په خپل بنسټ کې نیشنلیزم دی

د ځمکې پر مخ، چې څومره انسانان اوسېدلي دي، یا نن چې په کې اوسېږي، دوی ټول د یو او بل په نامه خامخا د یوې لیارې، د یو مذهب یا د یوې عقیدې لرونکي او د خپلوا که ژبې خاوندان دي، او دوی هېڅکله دې ته په اسانه نه د سوب شوي، لا هم نه سوبېږي، څو له خپلې عقیدې، مذهب یا له خپلې لیارې او ژبې څخه واوړي. دا ژبه ده، چې عقیده او مذهب خپروي، او دا عقیده او مذهب دی، چې ژبې او فرهنګ ته وده وربښي. د لوی خدای(ج) په ستر حکمت کې هم ژبه د دین پالنې او ولس پالنې بنسټیز لامل ګرځول شوی دی. څومره چې یو ولس خپل دین پاللی، هغومره یې خپله ژبه پاللې ده. څومره، چې یو ولس د خپلې ژبې له پاللو څخه لرې شوی، هغه ولس هغومره د خپل ژوند د پایښت له بنسټونو څخه جلا شوی او د هلاکت کندې ته غورځېدلی دی.

دین نه یوازې د انسان ګروهې او انګېرنې سوچه او سپېڅلې کوي، چې په ملي جوړښت کې ملي فرهنګي بنسټونو ته پیاوړې وده وربښي. یعنې: دین د ژبې له لیارې د ولس فرهنګ نه یوازې دا چې غښتلی کوی؛ بلکې ډېره زیاته وده هم ورکوي. له دې کبله ویلی شو، چې دین د ولس د ژبې او فرهنګ د ودې او پراختیا ستر عامل دی. همدا دلیل دی، چې د اسلام دین عربي فرهنګ او د عیسوي دین یهودي فرهنګ ته په نړۍ کې د ودې او پراختیا ډېره پراخه ورشو ورکړې ده. چېرته، چې څوک عیسایي دی، هغه د یهودي فرهنګ خاوند او چېرته، چې څوک مسلمان دی، هغه د عربي فرهنګ خاوند دی. موسی علیه السلام، چې کله یو شمېر بني اسرائیل د خوسي په عبادت کې اخته ولیدل؛ نو هغوی یې د لوی خدای(ج) او د بني اسرائیلو د ولس د دښمنۍ په ګناه ټول ووژل. همدا راز د اسلام د مقدس دین استازي حضرت محمد(ص) هم له خپل قریشي کهول سره تر هغه مهاله دښمني وکړه تر هغو، چې قریشو د اسلام د دین دښمني کوله. د دین ساتنې په لیاره کې د انسان دغه غبرګون کېدای شي دلته یوازې د روحاني، معنویت او خدای پرستۍ له اړخه د کتنې او څېړنې وړتیا ولري؛ خو زما په اند د روحانیت او معنویت نه بهر د ورځنی ژوند په ملي، سیاسي، اقتصادي، ټولنیزو او فرهنګي جوړښتونو کې هم دین لویه برخه درلودلې او ستر رول یې لوبولی دی. که یو لږ څه غوندې موږ د هر دین د پلي کېدو لاملونو ته ځیر شو، ډېر ژر کولای شو ویوهېږو، چې ادیانو، نه یوازې د ولسونو د روحانیت او معنویت اړخ پیاوړی کړی او هغوی یې د خدای پرستۍ په لیاره کې برابر کړي؛ بلکې د هغوی ولسي جوړښت یې هم په سیاسي اړخ یعنې نشنلیزم کې ډېرو لوړو پوړیو ته ورخېژولي او ژبه یې نړۍ واله ژبه ګرځولې ده. د بېلګې په توګه د موسی علیه السلام د بعثت نه پخوا بني اسرائیلو په مصر کې د مریي توب ژوند لاره، ځانته هېواد یې نه درلود، د یو ملت په توګه نه پېژوندل کېدل، خپلواکه نه وو، او په فرهنګي اړخ کې هم نړیواله پېژندګلوي یې نه لرله. موسی علیه السلام د روحانیت او معنویت

په جامه کې د لوی خدای(ج) د ارادې په بنسټ بني اسرائيلو ته د مصريانو له مريي توب ه ژغورنه ورپه برخه کړله، بني اسرائيل د موسی عليه السلام په لارښوونه د سينا ټاپو وزمې ته راغلل او د پرله پسې جګړو په ترڅ کې يې ټول فلسطين تر خپل واک لاندې راوست. همدغه مهال و، چې بني اسرائيلو په لومړي ځل د ځمکې پر مخ خپل اسرائيلي خپلواک ملت او دولت جوړ او د يو خپلواک هېواد خاوندان شول، کوم، چې په بادشاهانو کې يې د داود عليه السلام او سليمان عليه السلام نومونه په سر کې راځي. له دې امله د موسی عليه السلام دين په سلو کې سل يو سوچه نشنليزم ګڼل کېدای شي، چې د هغې د پلي کېدو سره سم د ځمکې پر مخ د اسرائيلو ملت او حکومت د منځته راتلو امکانات برابر شوي دي. کله، چې اسرائيلي دولت او حکومت د تاريخي پېښو له امله ړنګ او دغه ولس د روميانو مريان وګرځېدل، بيا هم د لوی خدای(ج) له لوري دغه ولس ته عيسی عليه السلام د يو بل سترناجي په توګه وبښل شو. د عيسی عليه السلام لارښوونې نه يوازې دا، چې د روحانيت اړخ لاره، او خدای پرستي يې تبليغاوه بني اسرائيل يې هم لمسول او هغوی ته يې جرئت بانښه، څو د روميانو له مريي توبه ځانونه آزاد کړي، کوم چې په همدې ګناه هم عيسی عليه السلام د خپلو يو شمېر حواريونو سره د روميانو له خوا صليب ته وخېژول شو. د عيسی عليه السلام کوم شمېر حواريون، چې د صليب له وېرې د يونان په لوري تښتېدلي وو هغوی په يونان کې د تاريخي شواهدو پر مخ د عيسوي دين او يهودي فرهنګ په خپرولو کې ډېر زيات بريالیتوبونه تر لاسه کړل، چې په نتيجه کې يې د خپلو ديني او فرهنګي تبليغاتو اډه روم ته ولېږدوله، او روم يې د خپلو ديني تبليغاتو مرکز وګرځاو، لکه چې له همدې ځايه بيا د فلسطين د بيا نيولو د موخې لپاره صليبي جګړو ته ديني او مذهبي رنګ ورکول کېده. ددغو پېښو تر مخه موږ ويلی شو، چې لوی خدای(ج) د يو خپلواک ملت او خپلواکې ژبې د لرلو پلوي دی. که چا په دې لياره کې کوم ګام اوچت کړ، نه يوازې دا، چې خدايي برۍ ورپه برخه شوی، چې په خپله هم د ولس د سترګو تور ګرځېدلی دی. په دې اړخ کې که د عربي ولس تاريخ ته ځير شو نو په خورا روښانه توګه څرګندېږي، چې د عربو ولس د اسلام د پيغمبر حضرت محمد(ص) له بعثت نه پخوا يو بدوي او صحرايي ولس و، په خپله سيمه کې يې تاريخي خپلواک ملت او حکومت نه لاره، لوی خدای(ج) پر دوی مهربانه شو او د اسلام د دين استازی حضرت محمد(ص) يې دوی ته وبانښه. تاريخي پېښې به ټولو ته روښانه وي، چې حضرت محمد(ص) د خپل عربي ولس د يو موټي کولو او د هغوی نه د يو لوی او خپلواک ملت او حکومت جوړولو په هڅو کې څومره ربړې او تکليفونه ګاللي دي. د اسلامي دين لارښود د عربي ولس نه يوازې روحانيت او معنويت خوندي کړ؛ بلکې ژبې او فرهنګ ته يې هم ابدي بڼه ورکړله. اسلام د عربو ژبه د ټولو عجميانو په ژبه کې، چې په اسلام مشرف شول، ورننو ېستله. اسلام د عربو فرهنګ يې د هغو ټولو عجميانو فرهنګ وګرځولو، کوم چې په اسلامي امت کې شامل شمېرل کېږي، او اسلام د عربو څخه د نړۍ پر مخ هسې يو خورا ستر روحاني، فرهنګي، اقتصادي، سياسي او نظامي ځواک جوړ کړ، چې په خپل مهال کې يې هېڅ ساری نه درلود. که چېرې لوی خدای(ج) عربو ته د اسلام دين نه وای وربښلی عرب به هم د داسې يو غښتلي او جاودانه فرهنګ خاوندان نه وو ګرځېدلي کوم، چې اوس هم د اسلام د دين د روښانه وړانګو په لمنه کې د نړۍ هر ګوټ ته بې له هېڅ خنډ او ځنډه ځان رسوي؛ نو ځکه بيا هم موږ ويلی شو، چې دين په خپل بنسټ کې نشنليزم دی او دغه نشنليزم هم د لوی خدای(ج) اراده ده. راځئ، چې د لوی خدای(ج) اراده په دوا ړو

سترګو ومنو او په دوارو لاسونو یې عملي کړو. لوی خدای(ج) کوم عاجز ذات نه دی او موږ یې هم څه عاجزان نه یو پیدا کړي، لړه پوهه او لږ غوندې عمل پکار دی. لکه څرنګه، چې لوی خدای(ج) عربي ژبه، پارسي ژبه، انګلیسي ژبه او داسې نورې ژبې پیدا کړې دي، پښتو ژبه یې هم پیدا کړې ده. یعنې پښتو ژبه هم د لوی خدای(ج) مخلوق دی او خدای(ج) د دغې ژبې د خاوندانو په توګه موږ هم را پیدا کړي یو. که چېرې موږ خپله پښتو ژبه، چې موږ ته او موږ پښتنانه یې پښتو ژبې ته پیدا کړي یو، ونه وایو او هېره یې کړو، دا به مو نه یوازې له خپله ځانه سره دښمني کړې وي؛ بلکې له لوی خدای سره به مو هم غټه دښمني او خیانت کړی وي. دا په دا، چې لوی خدای(ج) دومره عاجز نه دی، چې موږ پښتانه یې پښتانه پیدا کړي یو. هغه خدای(ج) کولای شوای، چې موږ یې د کومې بلې ژبې ویونکي پیدا کړي وای؛ خو د خدای(ج) حکمت، اراده او مشیت دا و، چې پښتانه، د پښتو ژبې ویونکي او د پښتو ژبې ساتونکي واوسو.

له دې کبله که غواړو، چې له ځانه سره، له خپلې ژبې سره، له خپله ولسه سره، له خپل هېواده سره او له خپل تاریخه سره دوستي وکړو، که غواړو، چې خپل لوی خدای(ج) او خپل دین او مذهب سره دوستي وکړو؛ نو راځئ، چې خپله ژبه خپله کړو، پښتو ووایو، پښتو ولیکو او پښتو ژبه په سیمه او نړۍ کې څنګه، چې د لوی خدای(ج) رضا او اراده ده، له نورو ژبو سره سیاله کړو.

دغه کار هغه مهال کېدای شي چې:

**(1)** موږ ټول ښتانه په یو مرکز راټول شو.

**(2)** یو موټی او خپلواک ملت او حکومت ولرو.

**(3)** په خپلواک ملت او حکومت کې مو یوازې پښتو ژبه د تعلیمي، فرهنګي او دفتري ژبې په توګه منل شوې وي.

موږ هېواد لرو، ولس لرو، حکومت لرو، مګر واک یې نه لرو. موږ ژبه لرو، فرهنګ لرو، تاریخ لرو، مګر ناپېژندلي پاتې دي. که غواړو، چې د خپل هېواد، د خپل ولس، خپل حکومت د خپلې ژبې او د خپل فرهنګ خاوندان شو؛ نو راځئ، چې خپلو تعلیمي، فرهنګي او دفتري مؤسساتو کې یوازې پښتو ژبې ته ځای ورکړو، څو په دې توګه په سیمه او نړۍ کې له نورو ولسونو سره سیال، تاریخ ته سر لوړي او د راتلونکو نسلونو د ستاینې وړ وګرځو. که نه نو د تل لپاره به د پردیو ژبو او فرهنګ په اغېز کې لتاړ پاتې یو.

*مبارز ځاپې، بن جرمني*

د دعوت خپرونه د 1380 کال د مرغومي میاشت پرله پسې ګڼې 132- 133

# نیشنلیزم هیڅکله هم د هیڅ دین بنسټ نه دی

یوه ورځ یو غربي ژورنالست د خلق د دیموکراتیک ګوند د عمومي منشي، د وزیرانو د شورى رئیس، د وسله والو ځواکونو د سر اعلی قوماندان، د شرق سر خوږلی نابغه او خلاق رهبر ملګري نورمحمد (نور محمد تره کي) څخه پوښتنه وکړه، چې دا ګونګوسي څومره ربښتیا دي، چې ته له حفیظ الله "امین" سره ژور اختلاف لرې؟ "نو هغه لومړی په کړس کړس وخندل او د تالو ژبې څپرمه د سرو زرو دوه غاښونه یې هم وبرېښېدل؛ نو ځواب یې ورکړ، چې: "تاسې امپریالیستان په موږ پسې پروپاګند کوئ، زه چې ملګری "امین" هر ځل ګورم من من غوښه اخلم او په جامو کې نه ځایېږم."

د تره کي دروغ ربښتیا؛ خو بیا د هغه په خوله د بخمل بالښت په ابښودلو څرګند شول؛ خو زه په ربښتیا، چې د هر شریف، با درده او با احساسه افغان په خوښی خوښېږم او په جامو کې نه ځایېږم او هغه، چې بیا زما د قوم "صافي" بچی وي؛ نو بیا خو غوړي لا غوړ... ورمه ورځ مې د یو دوست په کور کې د "دعوت" جریدې یو سلو دوه ویشتمه ګڼه، چې غالباً همدا وروستۍ شماره ده تر نظره شوه. ټول عنوانونه مې په منډه منډه له نظره تېر کړل، چې واقعاً ډېرو په زړه پورې مطالبو ته په کې ځای ورکړل شوی و، چې د هغو له جملې څخه یو یې د ښاغلي مبارز "څاپي" په ښکلي قلم په اتم مخ کې (د هر دین بنسټ نیشنلزم دی) تر عنوان لاندې یو مضمون ولوست. هغه د چا خبره، چې په لومړي ځل؛ خو مې پرې سر خلاص نه شو. او د خپل عادت پر خلاف د دویم ځل لپاره مې بیا ولوست. دا مضموم، چې نیمه اکاډیمیکه بڼه لري د پرګرافونو تړاو او ارتباط یې منظم او د لیکنې ژبه یې خوږه او سلیسه ده او لیکوال د علمي پس منظر د څرګندونې په څنګ کې د دې غمازي کوي، چې مبارز صاحب د خپلې ژبې او کلتور ودې او پراختیا ته څومره لېواله او د څومره ژور احساس درلودونکی دی کوم، چې د شاباس مستحق او د همکارۍ وړ دی؛ خو له بده مرغه مضمون نه یوازې دا، چې یو شمېر تاریخي غلطۍ او تېروتنې لري او د اسماني ادیانو په هکله یې معلومات ډېر کمزوري دي، بلکې د پیغمبرانو د بلنې او دعوت له اصلي جریان سره چندان ډېره نه لګوي.

زه نه ملا یم، چې د زېږ کتاب د متن، حاشیې او نکتې په رڼا کې د دې مضمون شرعي اړخ وڅېړم، چې د اسماني ادیانو او د خدای تعالی د ریښتینو او معصومو پیغمبرانو د حرمت او تقدس حریم په کې څومره محفوظ یا په کوم کچ پایمال شوی دی؟ نه خو د پوهاند صبب کاکړ په شان د تاریخ پوهنې له

باریکیو سره اشنا یم او نه هم پخپله د مبارز صاحب غوندې د لیکوالۍ له فن سره بلد یم، چې مقاله یې له سره چاڼ او غلبیل کړم او د ریسرچ او کره کتنې له میکروسکوپ څخه یې پاس کړم. البته یو تخنیکي احساس لرم، چې د انتقاد او ګوت څنډنې په ځای د یو هدفمند اصل لپاره ځینې کمزورۍ په ګوته کوم، تر څو ښاغلی "ځاپی" او ممکن درانه لوستونکي ورڅخه ګټه واخلي او ځینې تاریخي حقایق له نظره تېر کړي، او زما یقین دی، چې موږ د غرب نمک خورو افغانانو که ډېر معنوي او فرهنګي ارزښتونه له لاسه ورکړل؛ نو د اروپا او امریکا د دیموکراسۍ په سیوري کې مو یو ډېر مهم شی تر لاسه کړ او هغه په واقعي ډول د ژبې، مذهب، لیکنې او نظر خپلواکي ده، چې د زغم او برداشت په څنګ کې یې زموږ سینې پراخه او حوصلې لوړې کړې، او هم مو د عربي الفاظو په ځای د پښتو تورو ته مخه شوه، چې دا دی زموږ د قوم ځینې تعلیم یافته ځوانان د "صافي" د کلیمې په عوض "ځاپی" لیکي، چې ځکه ص، ف اصلي عربي الفاظ دي؛ خو ځ، پ پښتو ټکي دي. تر څو په دې ډول د عربي فرهنګ سره فاصله و نیوله شي او خپلې ژبې ته وده ورکړل شي. خیر دا د هر چا د مزاج او انتخاب خبره ده او حقوق یې له خاوندانو سره خوندي دي. اوس راځم اصلي مطلب ته او بهتره به وي، چې له عنوان څخه پیل وشي.

**1**- مبارز صاحب لیکي ((د هر دین بنسټ نیشنلیزم دی)) که چېرې دا نظریه دده شخصي اند او فکر وي؛ نو دا په ده پورې اړه لري؛ خو که خبره د واقعیت او اصولو وي؛ نو بیا حقیقت بل شی دی. ځکه د ټولو اسماني ادیانو بنسټ په درې شیانو ولاړ دی (خدای پرستي او د هغه وحدانیت، د پیغمبرانو او رسولانو استازیتوب او معصومیت او درییم یې د قیامت راتګ او نېکانو او بدانو ته د هغوی د عمل مناسب پاداش دی. مبارز صاحب ته به معلومه وي، چې د اسلامي نړۍ د شپږ پنځوسو هېوادونو څخه یوازې دوه ویشت یې عربي ژبي دي یا په بله مانا د یو میلیارد مسلمانانو څخه یوازې دوه سوه میلیونه یې عربان دي، او پاتې یې له نورو قومونو او ولسونو څخه دي. د عیسویت دین یوازې د رومیانو په منځ کې منحصر پاتې نه دی؛ بلکې د کاتولیک، پروتیستانت او ارتودوکس په میلیونو میلیونو پیروان د نړۍ په ګوټ ګوټ کې خواره دي. یهودیت یوازې په یورشلیم او تل ابیب کې بند نه دی، د حبشې او اریتریا فلاشا هم یهودان دي. همدارنګه غیر اسماني ادیان لکه بودیزم یوازې په تبت او بوتان کې معتقدین نه لري؛ بلکې د دلایلاما د مشرۍ لاندې درې سوه شپېته میلیونه بودیستان نن د نړۍ تقریباً څلورم دیانت شمېرل کېږي. د رام، سیتا او ګیتا عبادت کوونکي یوازې هندو برهمنان نه دي؛ بلکې د نچلې ذات "کم اصله" هندوانو دین هم دی، چې مختلفې ژبې او قومیتونه لري. په داسې حال کې، چې د دین په نسبت د نشنلیزم زاویه ډېره کوچنۍ او هېڅ د مقایسې وړ نه ده. او بله دا، چې نیشنلیزم؛ خو د یو سیاسي مکتب په صفت همدا څو لسیزې وړاندې راڅرګند شو او په پخوانیو زمانو کې یې فقط د یوې روحیې بڼه درلوده او بس.

**2**- نوموړی په خپل مضمون کې لیکي: (حضرت محمد (ص) له قریشو سره تر هغې دښمني کوله تر څو، چې قریش په اسلام نه وو مشرف شوي...) ددې جملې په لیکلو دې ښاغلي پخپله خبره د بطلان کرښه کش کړه، یعنې دا، چې د حضرت پیغمبر دوستي او دښمني د دین په خاطر وه نه د عربي ژبې او عربي قومیت لپاره. او ځکه؛ خو حبشي نسله بلال له روم څخه راغلی صهیب او فارسي نژادی سلمان د اسلام د ستر پیغمبر یاران او ابو لهب او ابو جهل، چې د هغوی د خپلې کورنۍ او ټبر غړي وو، ستر

دښمنان وو، او دا ددې څرګنده بېلګه ده، چې د دين بنسټ پر نيشنليزم باندې نه دی ولاړ؛ بلکې عقيده، رياضت او روحانيت د دين بنسټ جوړوي، چې د خالق له لوري ورباندې مخلوق ته هدايت شوی وي، او يا دا، چې په خپله د انسان تخليق وي؛ لکه بت پرستي او نور، چې هېڅکله او هېڅ چېرې د يوې ځانګړې ډلې، ژبې او قبيلې په انګړ کې قيد نه دی پاتې شوی او مختلفې پرګنې، ولسونه، رنګونه، ژبې، سمتونه او اړخونه يې په بر کې نيولي او زه فکر کوم، چې تاسو هم په دې کې د شک لپاره ځای نه لرئ.

3- مبارز صاحب فرمايي: ((د موسی عليه السلام دين سل په سلو کې سوچه نيشنليزم ګڼل کېږي)). خو زه وايم که نوموړی يو ځل بيا د اديانو په هکله لږ سرسري غوندې مطالعه وکړي؛ نو دا به راسره ومني، چې دا يوه افترا ده ځکه کله، چې موسی عليه السلام ته د پيغمبرۍ لومړنی اسماني پيغام راغی؛ نو هغه دا و، چې ته ولاړ شه او فرعون ته د سمې لارې بلنه ورکړه او دا هغه حقيقت دی، چې د اخري سپارې د سورت نازعات په اولسم، اتلسم او نولسمو اياتونو کې ورته په صراحت اشاره شوې ده. او دا ددې مانا لري، چې دا پيغمبر يوازې بني اسرائيلو ته نه دی راغلی بلکې لومړی دعوت يې قبطيانو ته و، چې د فرعون قوم و؛ خو کله، چې د فرعون د ايمان څخه نا اميده شو نو خپل قوم ته يې وويل، چې اوس بايد له مصر څخه کډه وکړو تر څو د فرعون له غلامۍ آزاد او يوازې د خدای(ج) بنده ګي وکړو. همدا رنګه که ښاغلی ځاپي په دې نظر وي، چې د حضرت موسی(ع) دين سوچه نشنليزم دی؛ نو بيا دې مهرباني وکړي او دا دې په ډاګه کړي، چې په دې صورت به د يو اسماني رسالت او د ګاندي او غفار خان د سياسي غورځنګ تر منځ څه توپير وي؟.

4- نوموړي د خپل مضمون په بله برخه کې ليکلي: ((محمد(ص) د خپل عربي ولس د يو موټي کولو او د هغوی (عربانو) لپاره د يو خپلواک ملت او حکومت د جوړولو په هڅو کې څومره ربړې او تکليفونه ګاللي دي...)) خو حقيقت دا دی، چې د اسلام ستر پيغمبر د مکې معظمې د حرا له سمڅې واخله د وفات تر ورځې، يعنې د پيغمبرۍ په ټول درويشت کلن عمر کې هېڅکله، هېڅ چاته، هېڅ چېرې د عربيت او عربي امت او عربانو لپاره د خپلواکۍ او عربي قوم د حکومت خبره په خوله هم نه ده ياده کړې؛ بلکې تر دې، چې يوه ورځ د هغه په وړاندې د عربيت خبره وشوه؛ نو د هغه مخ سور شو او هغه سړي ته يې وويل، چې په تا کې لا اوس هم د جاهليت خوی پاتې دی. په حج الوداع کې، چې تر نژدې يو لک اصحاب د عرفات په غونډۍ باندې د حضرت پيغمبر(ص) په شاوخوا کې راټول او چوپ ولاړ و؛ نو د نبوت وروستی پيغام و: ((ما په تاسو باندې خپل نعمتونه تمام کړل، تاسو يو د بل وروڼه ياست. ستاسو وينه، مال او ناموس يو پر بل حرام دی او اسلام مې ستاسو لپاره غوره او منلی دين در استولی دی)).

کله، چې د اسلام دويم خليفه عمربن خطاب(رض) د بيت المقدس د فتحې او تسليمۍ په مراسمو کې د ګډون لپاره ورغی؛ نو هلته ځينو فاتحينو او قوماندانانو ورته وويل، چې امير المؤمنينه ته په اوښ سپور شه او غلام دې را کوز کړه او بله دا، چې قيمتي جامې او چپن واغونده، که نه؛ نو بيا به د يهودو او عيسايانو مشران خاندي، چې د عربو مشر دا څرنګه سړی دی؟ نو هغه ورته وويل: دا عزت او دبدبه خدای پاک(ج) ماته د اسلام له درکه راکړې که نه؛ نو په مکه کې؛ خو په ما باندې خپل پلار اوښان هم نه ساتل، خبره د عربيت نه ده د اسلام ده.

5- په بل پرګراف کې مبارز څاپې صاحب داسې وايي: ((موسى عليه السلام، چې کله بني اسرائيل د خوسي په عبادت اخته وليدل..؛ نو هغوی يې ټول ووژل)). داسې ښکاري، چې مبارز صاحب د مکې په ځای ترکستان ته تللی دی او خبره يې بېخي سرچپه ليکلې ده. ځکه کله، چې الله تعالی نژدې او يا تنه بني اسرائيل په خپل عذاب هلاک کړل؛ نو موسى عليه السلام سخت خپه شو او د ګيلې په ډول يې وويل، چې يا ربه دا خلک به دې بل ځای هلاک کړی وای اوس؛ خو دوی له ما سره راغلي وو... موسى عليه السلام هېڅکله هم د پيغمبرۍ په وخت کې څوک نه دي وژلي البته مخکې له دې، چې پيغمبر شي، يو قبطي يې په بوکس وهلی و او هغه ترېنه مړ شوی وو. له دې واقعې پرته هېڅ اسماني کتاب، نه کوم مستشرق، نه کومې انسايکلوپيډيا ((دائرآ المعارف)) نه اسلامي او يهودي موٰرخ ليکلي، چې حضرت موسى عليه السلام دې د خپل امت او قوم خلک وژلي وي.

6- مبارز صاحب د خپلې مقالې په پای کې غالباً د وړانديز په ډول وايي چې: راځئ له پښتو سره پښتو وکړو، هغه د نورو ژبو سياله کړو او دا هله ممکن ده، چې پښتو زموږ د ملک او حکومت يوازينۍ رسمي ژبه شي؛ خو زه په خپل وار، چې يو ساده او شډل پښتون يم د لږ څه اختلاف د اجازې تر څنګ دده ملاتړ کوم او دعا کوم، چې خدای(ج) دې د افغاني نشنليستانو دا بنده ببرۍ روانه کړي، چې د طلبای کرامو نه وروسته په کابل کې د دوی حکومت راشي. ځکه شرمېدلو کمونستانو او ازار ګټلو اخوانيانو، چې د انقلابي سرو او شنو شعارونو په سيوري کې يې خپل وطن برغنډ برغنډ کړ او د ملت ملي جوړښت، قبايلي دود دستور او عنعنوي او فرهنګي اډانې يې لتاړې کړې، ډېره ممکنه ده، چې نشنليستان هغه له سره ترميم او په پښو ودروي او هم به له دې څخه په الهام د کوزې پښتونخوا قوم پرستان وتوانېږي، چې خپل نصب العين او موخې ته ورسېږي. ځکه ومو ليدل، چې غلام احمد بلور او افضل لالا د نواز شريف او بې نظير بوټو په فيدرالي حکومتونو او د فريد طوفان او بشير بلور د مشرۍ لاندې يو درجن وزيرانو د صوبه سرحد ((پښتونستان)) په کابينه کې نه يوازې دا، چې د خپل ايالت د نوم په بدلولو کې ناکام راغلل؛ بلکې د پېښور د تلويزيون هغه دوه ساعته تلويزيوني پښتو خپرونه يې بېګرته فعاله نه کړای شوه، چې افتاب "شېرپاو " پيل کړې وه. په هر حال د مبارز صاحب مبارزه که د پښتو په ځای افغان شموله شي دا به بهتره وي، ځکه دا دې واقعيت تر اړخه، چې پښتانه د افغانستان اکثريت دي دا هم حقيقت دی، چې تاجکان، هزاره، بلوچ، ازبک، ترکمن، قزلباش او پشه يان هم ددې ملک ګډ وارثين دي او زموږ اساسي قانون د هغوی حقوق ټاکلي دي او که نه؛ نو هغه د شينواري خبره به شي، چې ما دې دور بابا ووهي که يې راڅخه شل کړي ".

دا وه د ښاغلي سرباز "صافي " نيوکه، چې د دعوت له خپروني څخه کټ مټ وليکله شوه. ددې نيوکې په ځواب کې، چې ما څه ليکلي، هغه د دعوت خپروني په **138- 139** پرله پسې ګڼې کې په **1381** کال کې خپاره شوي دي، چې ګران لوستونکي يې دا لاندې لوستلی شي.

# بیا هم وایم، چې هر دین په خپل بنسټ کې نیشنلیزم دی

ښاغلي سرباز "صافي"، چې ښايي صافي شوی "ساپی" وي، د دعوت د ښکلي خپروني په **132** ګڼه کې د "نشنلیزم د هیڅ دین بنسټ نه دی" تر سریزې لاندې یوه ښکلې او استادانه لیکنه خپره کړې ده، نو موږې، چې د مضمون د سبک څخه یې برېښي ښايي د سید قطب او حسن البناء له مکتبه راوتی وي، په دې لیکنه کې زما د هغه مضمون پر عنوان او محتویاتو ګوت نیونه کړې کوم، چې د دعوت د ګرانې خپروني په 122مه ګڼه کې د "هر دین په خپل بنسټ کې نشنلیزم دی" تر عنوان لاندې خپور شوی و. مخکې تر دې، چې د ښاغلي سرباز "صافي" د انتقاد په هکله څه ولیکم غوره ګڼم د دین د کلیمې د تعریف په هکله کتاب ته مراجعه وکړم.

د پښتو اریانا دائرآ المعارف پینځم ټوک په **986**یم مخ کې ددې په هکله داسې وايي:

دین: ***Religion*** د پوهانو په نزد، دین الهي وضع ده، چې د ذوالعقولو لپاره له دې جهته راغلی دی، چې هغه ومني او عمل پرې وکړي. او د دوی د دنیایي چارو د سمون او په آخرت کې د فلاح باعث شي، او دا دوې خواوې لري: یوه د عقیدې خوا، بله د عمل خوا. د دین نوم د عقیدې او عمل په هر سیستم اطلاقېږي؛ خو د مذهب او د امامانو په نزد، د دین کلیمه یوازې د اسلام پر دین دلالت کوي؛ لکه، چې په قرآن کریم کې راغلي دي:

((إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَامُ)) یعني دین د خدای(ج) په نزد اسلام دی. دین ځکه خدای(ج) ته مضافوي چې له ده څخه راغلی دی. او له دې جهته یې پیغمبر ته مضافوي، چې د هغه په واسطه څرګند شوی دی، او له دې جهته یې حکومت ته نسبت ورکوي، چې: دوی په دین ګروهېدلي او هغه یې منلی دی. وایي، چې دین او ملت یو مفهوم لري او په خپل ذات کې یو له بله اختلاف نه لري، او ددې دوه وو تر منځ اختلاف د ځینو اعتباراتو په وجهه دی؛ لکه شریعت ته، چې له دې جهته دین وایي، چې د اطاعت وړ دی، او له دې سببه یې ملت بولي، چې پر ده باندې خلک راغونډېږي، او وایي، چې د دین، مذهب او ملت تر منځ توپیر دادی، چې: دین الله(ج) ته منسوب دی، ملت پیغمبر ته منسوب دی او مذهب مجتهد ته منسوب دی.

د دین او ملت تر منځ توپیر فقط یو اعتباري توپیر دی او په ذات کې سره اختلاف نه لري، یوازې په اصطلاح کې شریعت او ملت پیغمبر ته مضافوي او دین خدای(ج) ته مضافوي".

د دین دغه پورتنی تعریف کټ مټ هغه تعریف دی، چې اسلامي پوهانو او عالمانو وړاندې کړی او د پښتو اریانا دائرآ المعارف په پینځم ټوک **986**یم مخ کې په کال **1354** کې په کابل کې چاپ شوی دی. ددې تعریف په مخ په روښانه توګه څرګندېږي، چې دین او ملت سره یو مفهوم لري او د هغه په ذات کې کوم توپیر نشته. کوم توپیر، چې ددې د پلي کېدو نه په وروستیو زمانو کې رامنځته کېږي، هغه ته اعتباري توپیر وایه شي، چې لا پرې هم د دین اصطلاحي سیستم واکمن شوی وي. ښه به دا وي، چې د اصطلاح د کلیمې په تعریف هم پوه شو. د اصطلاح کلیمه د پښتو - پښتو تشریحي قاموس د لومړي ټوک په اویا یم مخ کې داسې تعریف شوې ده:

*اصطلاح:* "یعنې داسې ژبنی ترکیب، چې په هغه کې ټولې کلیمې په خپلو اصلي معناوو نه استعمالېږي، او د ټولو کلیمو د معناوو د ترکیب څخه داسې یو واحد مفهوم لاس ته راځي، چې په جلاجلا ډول د هرې کلیمې د اصلي معناوو سره مستقیم ارتباط نه لري. "

د اصطلاح ددې پورتني تعریف له مخې به ښاغلي سرباز "صافي" ته روښانه شوې وي، چې دین او ملت په خپل ذات کې سره یو دي، او دا به هم راسره ومني، چې ما ویلي دي، چې هر دین په خپل بنسټ کې نشنلیزم دی، مګګر دا مې نه دي ویلي، چې نشنلیزم د دین بنسټ دی. بیا هم په خپلې خبرې ټینګار کوم او وایم، چې: دین د ملت د جوړونې ذاتي جوهر دی، چې د لوی خدای(ج) د سپېڅلې ارادې او مشیت له مظاهرو څخه یې ګڼلی شو، او همدا سبب دی، چې اسلامي عالمانو او پوهانو هم د دین په تعریف کې د ملت او دین تر منځ کوم توپیر نه دی لیدلی. له دې امله موږ هم ویلی شو، چې که څېرې د نویو سیاسي علومو په چوکاټ کې نشنلیزم د ملت جوړونې مفکوره ګڼله کېږي؛ نو دین د عقیدې سره جوخت د ملت جوړونې مفکورې سیستم هم په خپل ذات کې د ځانه سره لرلی دی، چې په پورته توګه د دین په تعریف کې اسلامي پوهانو او عالمانو ورته اشاره کړې ده.

په دې توګه کله چې ملت په خپل ذات کې د دین سره کوم توپیرونه لري؛ نو د ملت جوړونې مفکوره یعنې نشنلیزم هم، چې په ملت پورې اړه لري په خپله د دین د بنسټ سره وصلت مومي؛ لکه، چې ما هم په خپل پخواني لیک کې ورته اشاره کړې او هغه مې د لوی خدای(ج) سپېڅلې اراده، مشیت او رضا ګڼلې دی، د او سنیو نویو مروجو علومو له مخې هم هغه ته د نشنلیزم بنسټ وو ایو.

د عقیدې او عمل پر هر سیستم باندې د دین د نامه اطلاق په ننني مذهبي حاکمو شرایطو او حالاتو کې نه یوازې دا، چې په دین کې خورا زیات اعتباري توپیرونه رامنځته کړي، چې په عملي سیستم کې یې هم ډېر زیات اصطلاحي توپیرونه رواج کړي دي. کوم، چې اوس اوس اسلامي نړۍ ټول په ټوله کې د مجتهدینو د رامنځته کړو مذاهبو په وسیله د دین په اصطلاح مینه مسلماني دودیزه شوې ده. د مثال په توګه:

**1**- ښاغلی سرباز "صافي" که چېرې په خټه "ساپی" وي؛ نو "ساپی" پښتون دی او پښتون که موږ وغواړو او که ونه غواړو ارو مرو افغان دی؛ نو د غه ښاغلی به څنګه وکولای شي د افغان په نامه له پښتو او پښتونولی نه ووځي؟ له دې سره جوخت دا هم د پوښتنې وړ بریښي، چې ښاغلی سرباز که په رښتیا سره "ساپی" وي؛ نو د ساپیانو له دې څلورو قبیلو نه به له کومې قبیلې وي؟ ګوربز دی؟ ودیر دی؟ مسید دی؟ او که ګنداری دی؟ یعنې د دغو قبیلو څخه له کومې قبیلې دی؟.

کله، چې ښاغلی سرباز پوه شو، چې "ساپی" دی او د ساپیانو له دې څلورو قبیلو نه له یوې قبیلې څخه دی؛ نو بیا څنګه کولای شي ځان ته "صافی" وو ایي؟ معلومه ده، چې نو موږ د دین په اصطلاحي سیستم کې له "ساپي" تو به وتلی او "صافی" شوی دی. او دده دغه په اصطلاح کې فرهنګي بدلون د دین په ذات پورې هېڅ اړه نه لري.

دغه ټکي ته هم باید پام و ساتل شي، چې هېڅکله هم په هېڅ دین کې داسې نه دي راغلي، چې انسانان دې باید د دین له امله له خپلې ځانګې او قبیلې نه بېګانه شي. په قرآن کریم کې په څرګنده توګه راغلي دي، چې لوی خدای(ج) انسانان قبیلې قبیلې او ځانګې ځانګې را پیدا کړل څو سره

وپېژندل شي. په قرآن کريم کې دا هم راغلي دي، چې لوی خدای(ج) هر قام ته د هغه قام په ژبه هادي استولی دی. تاسې وګورئ، چې د هادي او پيغمبر تر منځ څومره توپير موجود دی؟ هادي خو لارښوونکي ته وايي، چې لا اجرايي واک او ځواک هم لري؛ خو پيغمبر يوازې استازی يا پيغام رسوونکي ته وايي، چې له اجرائي واک نه لرې ښکاري. په قرآن کريم کې دا هم راغلي دي، چې لوی خدای(ج) انسانانو ته مختلف اديان وا ستول څو پرې وازمېيل شي. که لوی خدای(ج) غوښتي وای، چې ټول انسانان په يوه واحد دين کې راغونډ کړي دا کار د هغه ذات د ارادې په مخه کې هېڅ مشکل نه لاره. ښايي همدغه خبره به وي، چې د مجتهدينو له خوا د دين په فروعاتو کې دومره زيات اعتباري توپيرونه رامنځته شوي، چې اوس اوس هېڅکله هم د ايران مسلمانان د پاکستان مسلمانانو، او د سعودي عربستان مسلمانان د مصر د مسلمانانو سره په يو واحد اسلامي سيستم باندې نه شي راټولېدلی. او په افغانستان کې، چې د طالبانو ځواک د ټولو اسلامي هېوادونو د عملي سيستم په خلاف زعامت لاره.

**2**- په کال **1998** ميلادي کې د پېښور د قصه خوانی بازار د دانش په کتاب پلورنځي کې ناست وم، چې يو "صافی" شوی طالب راغی او په کتاب پلورنځي کې له موږ سره کېناست. د پېژندګلوۍ نه وروسته د ږيرې پر مسئلې باندې، چې په هغو ورځو کې ډېره توده وه بحث او خبرې پيل شوې. هغه محترم طالب، چې ځان يې د طالبانو په تشکيلاتو کې د کابل د طب د انستيتيوت رئيس هم ګاڼه، په ږيرې باندې کلک ولاړ و، او ويل يې، چې د ږيرې ساتل او اوږدول فرض دي. دا ځکه، چې د اسلام پيغمبر د عمر تر اخره پورې ږيره ساتلې ده. ما ورته وويل ستا خبره رښتيا ده پيغمبر(ص) ږيره ساتلې وه؛ خو په هغه مهال کې د پيغمبر(ص) ستر دښمن ابوجهل، ابو لهب او ابو سفيان هم ږيرې لرلې. طالب وويل، چې موسی عليه السلام هم ږيره لرله. ما ويل منم، چې لرله يې؛ خو فرعون هم ږيرور و. نوموړی هېڅ قانع نه شو او ټينګار يې کاوه، چې که پيغمبر کوم عمل په همېشه توګه کړی وي، هغه پر موږ فرض دی. ما ورته وويل: پيغمبر(ص)؛ خو چيلتار هم تاړه، هغه وويل، چې موږ هم بايد چيلتار وتړو. ما ورته وويل، چې پيغمبر(ص)؛ خو عرب هم و؟ هغه وويل، چې موږ هم بايد عربان شو".

دغه بحث د څلورو ګېنټو نه وروسته بې له کومې نتيجې پای ته ورسېده. دا په دا، چې په کومو ټکيو، چې طالب ټينګار لاره، هغه زما په اند د دين په اعتباري توپير کې نه، چې د دين په اصطلاحي سيستم پورې اړه لرله او همدا خبره وه، چې طالبانو د اسلام په خاطر غوره ګڼله، چې عربان هم شي. کوم، چې زما په نظر د هغوی داسې هلې ځلې د اسلام د دين په ذات پورې وصلت څه، چې لا رجعت هم نه لاره.

**3**- په **2000** ميلادي کال کې د طالبانو د روغتيا وزير ښاغلی ملا عباس اخوند المان ته په سفر راغلی و، نوموړي په هغه غونډه کې، چې د کولن ښار په مربوطاتو کې د يو شمېر افغانانو له خوا ورته جوړه شوې وه، ګډون کړی و، چې زه هم په هغه غونډه کې وم. نوموړي وزير د خپلو اوږدو خبرو په پای کې د يوه افغان د پوښتنې په ځواب کې د ږيرې په هکله وويل، چې: ږيره فرض ده او موږ به دغه فرض په زوره عملي کوو. يعني پر خلکو به زوره ږيرې اوږدوو". ما ورته وويل، چې ښاغلی وزير صاحب د اسلامي دين د فقهي کوم کتابونه، چې ما له خلاصې نه د مستخلص تر اخره پورې لوستلي دي، په هېڅ يوه کې داسې نه دي ويل شوي، چې ږيره دې پر خلکو باندې په زوره اوږده شي، تاسې، چې دا کار

کوئ، دا سې بربښي، چې له پیغمبره مخکې منډې وهئ ".
ښاغلي ملا عباس اخوند په ځواب کې ماته وویل، چې: ته د لوید یځې نړۍ تر فرهنګي اغېز لاندې راغلی یې او په دې هکله پوره پوهه او معلومات نه لرې. په هغه فتاوي کتاب کې، چې د قاضي د پرېکړو د صادرولو لپاره لیکل شوی پوره او واضح هدایت شته.
دغه و د طالبانو په عملي سیستم کې د مذهب واکمنه ګروهه. طالب د دین په اصطلاحي سیستم د مجتهد په مذهب دومره د دین له پولې اوښتی و، چې د سنتو او فرضو تر منځ توپیر لا څه، چې سنتونه به یې د فرض په څېر لمانځل، او په دې نه پوهېدل، چې سنتونه؛ خو د زماني په اوښتلو سره تغیر مومي. لکه د مثال په توګه: د پیغمبر(ص) په زمانه کې د عربانو په شمول په ټوله نړۍ کې د جګړې اسیران به د وینځو او مریانو په څېر ساتل کېدل او دغه عمل د هغې زمانې له سنتونو څخه شمېرل کېده؛ خو نن ورځ په ټوله نړۍ کې غندل کېږي، چې لا منعه شوي هم دي ".
ښاغلي سرباز "صافي " په خپل زعم زما د مضمون د ځینو برخو په تاریخي پېښو کې هم ځینې تېروتنې په ګوته کړې دي، چې زما په نظر هغه ټول د موضوع په فروعاتو پورې اړه نیسي.
دا، چې د موضوع د بنسټ په هکله په پورته توګه زما تله درنه ښکاري؛ نو فکر کوم، چې همدومره به ښاغلي ته بس وي، او په فروعاتو کې به څه حاجت نه وي، چې سره لا پسې وڅېړو.
راغلو د پښتو او افغاني سیاست په هکله: دلته غواړم لږ غوندې تم شم. په دې ټکي زه پوره باور لرم او دا حقیقت هم دی، چې هر پښتون افغان دیکه په تورنتو کې هم اوسي؛ خو هر افغان پښتون نه دی که په افغانستان کې هم اوسېږي. سربېره پر دې دغو تېرو دوه دریو لسیزو هم وښودله، چې که په افغانستان کې پښتون نه وي؛ نو اوس به افغانستان هېڅ نه و. دا د پښتون برکت دی، چې افغانستان لا شته او د ښاغلي سرباز "صافي " په څېر ښاغلي هلته په تورنتو کې هم ځانونو ته افغان وایي. که نه؛ نو په افغانستان کې مېشتو "صافي " شویو افغانانو به دغه نوم هم لا دمخه له هغوی څخه اخیستی و. که چېرې ښاغلی سرباز "صافی "، چې ښایي "ساپی " وي، ځان پښتون وګڼي، دا به ورته ډېره غوره وي ځکه، چې "ساپی " پښتون دی او پښتون د افغان د ذات نوم دی. دا یوازې پښتون نه دی، چې دوه درې نومونه او صفتونه لري پارسیان هم په یو ځای کې پارسي، په بل ځای کې "دري " او په بل ځای کې ځان تاجک معرفي کوي، چې دا درې واړه سره یو دي. همدا رنګه په منځني ختیځ کې یهودان هم دوه نومونه لري، هم یهود او هم په اسرائیلو یادېږي. همدارنګه چېرته، چې زه اوسېږم د هغه هېواد د خلکو هم درې نومونه دي، چې بهرنیان ورته جرمن او الماني وایي؛ خو دوی په خپله ځان ته دوچ او خپل هېواد ته دوچ لاند وایي.
ښاغلی سرباز "صافی " د خپل لیک په پای کې د لرې پښتونخوا او د هغه ځای د ځینو پېښو په هکله د یادونې سره جوخت د ځینو سیاسي اشخاصو نومونه هم په ګوته کړې دي. په دې هکله باید ووایم، چې په لره پښتونخوا کې د طالبانو په څېر داسې ځواکونه او شخصیتونه شته، چې د دین په اصطلاح مینه مسلمانان دي او هر څه د دین تر نامه ځاروي، حتی خپله ژبه هم. له دغو کسانو څخه یو هم مولانا حسن ګل دی؛ لکه څرنګه، چې ماته ویل شوي دي، نوموړی مولانا حسن ګل صاحب د طالبانو په واکمنۍ کې د ننګرهار پوهنتون محصلینو ته د خپلو اسلامي ارشاداتو په ترڅ کې دا هم ویلي وو، چې: عربي ژبه د جاهلانو ژبه ده، پښتو ژبه د کافرانو ژبه ده، او اردو ژبه د مسلمانانو ژبه ده، ځکه چې

دغه ژبه په اسلامي ټولنه کې زبږېدلې او را لويه شوې ده. له دې امله تاسې محصلين بايد د پښتو او عربي ژبو پر ځای د اردو ژبه زده کړئ، چې يوه سوچه اسلامي ژبه ده. "

وګورئ په يوه ټولنه کې، چې داسې کسان شته والی ولري او د ځواک خاوندان هم وي؛ نو څوک به وکولای شي هلته د ملت جوړونې يوه وړه غوندې هڅه هم په لياره واچوي؟ سره ددې، چې داسې هڅې به د دين له ايجاباتو څخه هم ګڼل کېږي.

لره پښتونخوا؛ خو د پاکستان په برخه شوې څوک، چې پاکستانی سياست کوي هغه به اردو مرو اردو ژبه وايي؛ لکه څنګه، چې په بره پښتونخوا کې تر اوسه پورې دود او معمول دی، څوک، چې افغاني سياست کوي؛ نو خامخا به پارسي ژپه وايي. دا رنګه عملي سيستم، چې هغه هم کاملاً د انساني حقوقو او اسلامي دين د بنسټيزو ارشاداتو په خلاف د يوې تحميل شوې پېښې او حادثې نه زيات نور څه ارزښت نشي لرلی؛ نو څوک به ورته درناوی وکړي او وبه يې مني؟.

راغلو په افغانستان کې د مېشته و لږکيو قومونو په هکله.

لږکي؛ خو په هر هېواد کې شته ، چې ښاغلي سرباز هم په خپل ليک کې ورته ګوته نيولې ده. په قوانينو کې هم د هر چا حق او حقوق خوندي شوي وو ، زه هم وايم، چې دا کار شوی لا ، چې زما او ستا حق او حقوق هم په قوانينو کې تثبيت شوي وو ؛ خو سرباز به افغان وګڼم، چې په رښتيا سره د افغانستان په ټولو فرهنګي او اداري ارګانونو کې د خپل حق په تناسب خپله ژبه وکاروي؟ دا کار ځکه نه شي کولی، چې په افغاني اصطلاح مين او له افغاني بنسټه، چې پښتونولي ده جلا شوی دی. همدې ښاغلي وړانديز کړی، چې د پښتني سياست په ځای که افغاني سياست ته مخه وشي دا به ښه و. "زه هم وايم دا ښه کار دی؛ خو په اوسنيو حاکمو شرايطو او حالاتو کې هغه هم په داسې افغانستان کې، چې لکه د امريکايي فوټبال د لوبې د پنډوس په څېر کله د پاکستان او کله د ايران په لاس کې رغړي، دا لا څه، چې اوس له پولې نه بلخوا هغه خوارکي تاجکان هم برېتونه تاوه وي او افغانانو ته خپل زور ښيي، افغاني سياست کول به د ټولو انساني حقه حقوقو په چوکاټ کې کله ممکن وبربښندلای شي؟ چې د افغانستان د اصيلو وارثانو له لاسه د افغاني سياست اصيله وسله هم د هغوی د دښمنانو په لاس ورغلې او هغه وسله هم شېبه په شېبه په ماتېدو ده. افغانستان خو پښتنو جوړ کړی، او دا پښتانه دي، چې افغانستان به ساتي.

په پای کې به د "ځاپي" د توري په هکله هم څه ووايم :

ما د "ځاپي" توری، چې د پښتو ژبې د "ځپې" د توري د مصادرو څخه يو اصيل توری دی غوره کړی، چې هېڅکله هم د دين په خلاف کار نه دی. دا په دا ، چې د داسې توريو په کارولو سره څنګه، چې ددې ليکنې په پورتنيو برخو کې ورته اشاره وشوه، هېڅکله هم په دين کې خلل نه پرېوځي؛ بلکې د دين د اصيل بنسټ پر مخ د ملت جوړونې په هڅه کې يو پياوړی ګام ګڼل کېږي. که د ښاغلي سرباز "صافي" هدف دا وي، چې د عربي توريو پر ځای د پښتو توريو کارول به د عربي فرهنګ سره دښمني وي، آيا دې ټکي ته يې هم کله پام اوښتی، چې د پښتو توريو پر ځای به د عربي توريو کارول هم د پښتني فرهنګ سره دښمني وي او که نه؟ په دې ځای کې زما انګېرنه داده، چې: کوم اسلام، چې په مکه او مدينه کې نازل شوی، هغه په مدينه کې خاورو ته سپارل شوی؛ خو کوم اسلام، چې موږ ته را رسېدلی، دا د عربو فرهنګي يلغار دی، چې د حضرت معاويه له زمانې نه را پدېخوا به د اسلام تر بيرغ

لاندې هرې خوا ته صادرېده.

ګڼې اصيل اسلام او هغه، چې به پيغمبر(ص) ته وحې کېدله او پيغمبر(ص) به تبليغاوه هېڅکله هم د کوم ولس د الفبا د توريو سره ضديت نه لاره، او نه هم د کوم ولس د الفبا توري اسلام ته صدمه رسوي لا چې اسلامي دين ته پراختيا بخښي.

هره ژبه د لوی خدای(ج) مخلوق دی؛ نو له دې امله هېڅ يوه ژبه پر بلې ژبې غوره والی او سپېڅلتيا نه لري. کومې ژبې، چې اوس او س د عربي ژبې په شمول د تقدس وړ برېښي، هغه خو يو اعتباري تقدس دی، چې په اصطلاح کې د هغې ژبې د مجتهدينو له خوا ورته ورکړل شوی.

دا وه زما ځوابيه ليکنه. هيله ده ښاغلی سرباز "صافی" تر هر څه دمخه په هره پېښه، هره موضوع او د هرې مسئلې په بنسټ کې څېړنه وکړي، او بيا دې د هغه په فروعاتو کې د فکر او سوچ نيلی وځغلوي. دا که په اديانو پورې هم اړه ولري. ځکه، چې دغسې کړنه د پوهانو لپاره يو اځنی لياره ده، چې د رښتيا او په لوري ورباندې تللی شي.

**مبارز څاپی**

**27/3/2002 بن، جرمني**

*دغه ځوابيه ليک د دعوت د خپرونې په **138** او **139** ګڼه کې، چې په **1381** کال کې خپره شوې خپرو شو. ددې ځوابيه ليک په ځواب کې بيا يو ځل د زلمي "مومند" په نامه د دعوت د خپرونې په **141** مه ګڼه کې خپله او ږده نيوکه خپره کړله، چې ګران لوستونکي يې کټ مټ دا سې لوستلی شي:*

# "چې آیا هر دین په خپل بنسټ کې نیشنلیزم دی؟"

په لنډ ډول غواړم یو څو حساسو ټکو ته، چې مبارز څاپې د هغې یادونه د دعوت په 138 او 139 ګڼو کې کړې ده اشاره وکړم او تر څنګ یې دا باید په ډاګه شي کـه چېرې مبارز څاپې دغـه لیکنې اشـتباهاً کړې وي او یا د احساساتو لاندې یې خپل نشنلیزم داسې سترګې ورپټې کړې وي، چې لـه یـوه اړخـه د دین په تعریف او قرآني آیتونو کې نغښتې د زهرو ګولۍ د دعـوت لوسـتونکو تـه وړانـدې کړې، او پـه دې ترتیب یې هڅه کړې تر څو یې خپل نشنلیزم په خلکو کې په دغه ډول تزریق کړي. او له بله اړخه هغـه د توهین نه ډک کلیمات، چې د دین، شریعت او د هغه پورتـه یـې د اسلام د سـتر پیغمبـر(ص) پـه هکلـه کړې باید الله ته توبه وکاږي.

*دین او مذهب:*

دین او مذهب یوه عقیده او عملي لاره ده، چې د انساني ټولنې د بهبود او لارښوونې لپاره د الله لـه اړخه وضع شوې او د پیغمبرانو او انبیاوو په واسطه انساني ټولنې ته وړاندې شـوی. دیـن پـه خپلـه یـوه عقیده او د یو ژوند یو سیستم دی، او ملت د انساني ټولنې یو ټولې ته، چې په یوه ځانګړې جغرافیایي پوله کې ژوند ولري ویل کېږي. څرنګه، چې دین د ټولې انساني ټولنې لپاره نازل شوی په دې اساس اسلامي امت د یوې خاصې او ځانګړې ټولنې او یا جغرافیایي پولو پورې محدود نه دی؛ بلکې د ټولې انساني ټولنې سره سر و کار لري. کـه چېرې انسـاني ټولنـه نـه وي؛ نـو بیـا د دیـن مانـا بـه څـه وي؟ پـه دې اساس دلته د دین او ملت تر منځ د توپیر او تضاد سوال نه پیدا کېږي. تضادات او توپیرونه تـل د دوو هم مثلو او همرنګه موجوداتو تر منځ پیدا کېږي، نـه د عقیـدې او انسـان تـر مـنځ. پـه یـو شـیز نـه یـو شـیز عقیده درلودل د انسان یو طبیعي او حتمي ضرورت دی او د نړۍ په هېڅ ګوټ کې بـه داسـې انسـان ونـه موندل شي، چې په یوه شي نه یو شي عقیده ونه لري؛ نو څرنګه، چې دین او مذهب یوه عقیده او د ژوند یو سیستم دی او ملت د انسانانو ټولنه ده؛ نو په دې اساس دغه دواړه یو د بل لازم او ملزوم دي او یـو د بل تکمیلوونکي هم.

دا، چې تاسې کښلي، چې نشنیلیزم د ملت جوړوني مفکوره ده او په خپله د دین د بنسټ سره وصلت مومي کېدای شي ستاسې خپل دید وي. اما دا، چې هڅه مو کړې، چې نیـشنلیزم پـه دیـن پـورې وتـړې،

ډېر په خطا یاست. او دا په دې خاطر، چې دین په خپل اصل کې د نشنلیزم په خلاف مبارزه ده. اصلاً نشنلیزم د تل لپاره په کوچنیو ملیتونو کې را څرخېږي او د دغې مفکورې په اساس هر یو ملیت د خپلو نشنلیستي ځانګړتیاوو په نظر کې نیولو سره په بل باندې د تفوق او برترۍ ادعا کوي. د ملیتونو تر منځ د شخړو او نه حل کېدونکو لانجو سبب ګرځي. د نظامونو په جوړښت کې حق او ناحق د داسې څه غوښتنې کوي، چې په هېڅ صورت به یې ور نه وي. د دې نه اخوا په نشنلیزم او نشنلیستي ټولنه کې بیا په خپله د هغې ټولنې د وګړو او قبیلو تر منځ یو پر بل د قومیت او پلرنې میراث په بنسټ جګړې او شخړې را پورته کېږي او هر یو ځان د بل څخه یو من پورته ګڼي، او نور هم له ځانه ټیټ.

دا مسئله کورنیو ته او بیا په کورنیو کې افرادو او وګړو ته رابښکته کېږي، چې هر یو په خپله کورنۍ کې خپل ځان د بل نه پورته ګڼي، چې مثالونه یې نن په ټولو نشنلیستي خوځښتونو کې زیات لیدل کېږي. اما په دین کې د دغه سیاست نه یوازې سخت مخالفت شوی؛ بلکې د دې سیاست موجد یې شیطان ګڼلی؛ لکه د سورۃ بقرۃ د 30 آیت په اخر کې، چې راغلي او وایي، چې شیطان آدم(ع) ته د سجدې کولو نه انکار وکړ. دغه انکار د شیطاني سیاست لومړنی بنسټیز اصل جوړوي. دا ځکه، چې هغه د شرعي قانون د فوقیت څخه انکار کړی او د خدای(ج) د امر څخه یې مخ اړولی و. شیطان لویي وکړه، یعنې خپل ځان یې د نورو څخه لوی وګاڼه او د خپل ځان لپاره یې لوړوالی او مطلق العنانیت اختیار کړ. او هغه د کافرانو د ډلې څخه و، یعنې د مسلمانانو په پرتله یې کافرو ته ترجیح ورکړه او د هغو د ډلې سره یو ځای شو. شیطان وویل، چې زه د آدم(ع) نه ډېر ښه یم او دا ځکه، چې زه د اوره پیدا شوی یم او آدم(ع) د خاورې څخه. دا ټول هغه خصوصیات دي، چې د نشنلیزم بنسټ پرې ولاړ دی. د شیطان دغه وینا دا په ډاګه کوي، چې د نیشنلیزم یا قوم پالنې او نژاد پالنې موجد او لومړنی داعي شیطان دی، هغه به ویل، چې عقل هېڅکله دا نه قبلوي، چې د اعلی نسل او نژاد پر ځای ښکته او ادنی نژاد ته د ځمکې د خلافت او سیاست امور وروسپارل شي. د دې تر څنګ شیطان سوګند وکړ، چې که مهلت ورکړل شي؛ نو د نېغې لارې څخه به خلک خپلې یعنې د ګمراهۍ د لارې په لور سوق کوي او دا د هغه کړنلاره وه؛ لکه څنګه یې، چې د آدم(ع) او د هغه د ماندینې سره وکړل. او د هماغې پالیسۍ دوام دی، چې په ننني ټولنو کې د نشنلیزم، قوم پرستي، ژبني تعصب، د خپل ځان د علویت ښوولو او تل خپل قوم او ولس ته پرته له موازینو په نورو ترجیح ورکول او خپله هره غلطي توجیه کول او د بل هر نېک عمل د ذهني تنګ نظرۍ او قومي تعصب په اساس محکومول. د خپل قوم او ولس د برترۍ په خاطر د نورو ولسونو نفې کول، هغوی له خپلو کورونو او وطنونو نه شړل.... په ښېر سر راپورته کوي. هټلر د خپل جرمن قوم د غلبې او په نوره نړۍ باندې د هغوی د حاکمیت په خاطر د میلیونونو انسانانو په وژلو هم صرفه ونکړه، مګر نتیجه یې برعکس وخته او تر نیمایي زیات جرمنیان په خپله د روس په غلامۍ کې راګېر شول. لېنن که څه هم د یوې ایډیالوژۍ خاوند و؛ خو د خپلو نظریاتو تر څنګ یې د سپینو روسانو د غلبې او حاکمیت په خاطر په میلیونونو انسانان تر تېغه تېر کړل او پاتې یې په دې عصري دور کې د کمونیزم د غلامۍ په ځنځیرونو کې راونغاړل؛ خو د خپلو منحطو نظریاتو سره یو ځای دا دی د زوال کندې ته پرېوت. امریکا او انګلیس د خپلو سپین پوټکو د تفوق، برترۍ او علویت په خاطر او هغوی ته د اسانتیاوو د پیدا کولو په خاطر د افریقایي نړۍ ټول تور پوټکي د غلامانو په ښېر په ځنځیرونو کې وتړل او د اجباري کار د نه کولو په صورت کې د سپین پوټکو د سپیو خوراک

وګرځېدل.

نن په دغه معاصره نړۍ کې همدا اوس امریکا، چې په نوره نړۍ کې د بشر د حقوقو د ساتلو لپاره خپل ټټر وهي په خپل هېواد کې د تور پوټکو او سرو پوټکو یا ریډ انډینز د بشري حقوقو په هکله چو په خوله پاتې دي. د امریکا په زیاتو برخو کې هوټلونه اوس هم په خپله دروازه دا لیکنه لري، چې دلته د سپي او تور پوټکي راننوتل منعه دي. په سپینه روسیه کې سور او تور پوټکي اوس هم د جایداد د اخیستلو حق نه لري. په زمبابوې کې د انګلیسي سپین پوټکو لږکیو حکومت په تور پوټکو باندې د ظلم او تېري بې مثاله داستانونه لري او اوس برعکس. انګلیسانو په زمبابوې کې د خپلو ورلېږل شویو سپین پوټکو، چې د هغه هېواد زراعتي فارمونه یې غصب کړي وو، د دفاع په خاطر او د خپل قومي نشنلیستي خصوصیاتو او د خپل ځان د علویت په خاطر د هغه ځای د تور پوټکو د نظام په خلاف په کومو کومو کارونو او د سیسو لاس نه دی پورې کړی.

اسرائیلي نشنلیزم د خپل اسرائیلیت د علویت په خاطر د فلسطین په ولس کوم ناتار نه دی راکوز کړی. په هند کې د قومي عصبیتونو او یو په بل د برترۍ لپاره هره ورځ څومره کسان وژل کېږي او هلته د پورته او ښکته طبقې او د اعلی او ادنی نسل په نوم څومره بې ګناه انسانان په بې رحمانه توګه وژل کېږي او په همدې ترتیب په ګران هېواد افغانستان کې د روسانو د ماتې د مخه او د کمونیست رژیم د ړنګېدو تر څنګ روسانو د قومي تعصباتو د راپارولو لپاره له کومو کومو تاکتیکونو څخه کار وانه خیست؟ آیا ټول اقوام یې یو د بل په خلاف د قومي عصبیت په اساس ونه جنګول؟ که څه هم په افغانستان کې قومي تعصب ته لمن وهل اصلاً د انګلیسانو او د هغې وروسته د روسانو له خوا د خپلو مستعمرو د خوندي ساتلو او د خپل اقتدار د دوام په خاطر پیل شوه؛ خو په افغانستان کې دغه اور ته لمن د کمونستو عناصرو له خوا د روسانو او کې جي بي په مرسته هله زور واخیست، چې کمونیزم او روسي لښکرو په مجاهد او مسلمان افغانستان کې نا باوره ماتې وخوړه. دوی، چې ویې نه شوای کولای د خپل ټول ترور او وحشت له لارې او هم د خپلې منحطې ایډیالوژۍ له لارې د افغان ولس مجاهدانه مقاومت ورمات کړي؛ نو د نژادي تعصب د راپارولو لار یې اختیار کړه. یو قوم یې د بل په مقابل کې ورواچاوه، ازبک او هزاره یې د پښتنو سیمو ته او همدا راز د پښتنو ملېشه یې د هغو سیمو ته د قومي او ژبني د ښمنۍ د را پیدا کېدو او فساد په خاطر ورلېږل. روسانو د خپل همدغه کار لپاره په تاجکو کې په مسعود، په ازبکو کې په دوستم، او همدا راز په هزاره او ځینو خاصو وګړو باندې سرمایه ګذاري وکړه او بالاخره یې د کمونیست ګوند د له منځ تللو په صورت کې د تاجکو د قوم په نوم د احمدشاه "مسعود" او د ازبکو د قوم په نوم د ګلم جم "دوستم" په څېر څېرې په خپل لاس کې واخیستې. او په هغو یې سرمایه ګذاري وکړه، د هغو په واسطه یې په شمال کې قومي تعصبات راوپارول او هغوی یې دې ته وهڅولې، چې د خپل حاکمیت لپاره راپورته شي. "مسعود" یې تر پوزې پورې تقویه کړ، تر څو د تاجکو قوم په ټولو حاکم کړي، او د خپل قوم برتري او علویت پرې رامنځته کړي. مسعود هم د مجاهد او مسلمان په لباس کې د **1982** کال را وروسته د عصبیت دغه اور ته لمن ووهله، او کله چې روسانو کابل وروسپاره؛ نو په هغه وخت کې یې یو ځل بیا د دوهمې سقاوۍ خوب ولید او په دې هڅه کې شو، چې کابل د نورو ټولو قومونو څخه پاک او یوازې د تاجکو په لاس کې ورکړي، چې په نتیجه کې د زرګونو هېوادوالو په وژلو، د هېواد په ورانولو او د نظام په له منځه تللو

منتج شوه؛ خو د خپل ټول نشنلیستي او ژبني تعصب دا خوب یې له ځانه سره ګور ته یوړ. او ځای یې طالبانو ونیو؛ لکه څنګه، چې د طالبانو زیاته شمېره پښتانه وو. او دوی هم د اسلام په لباس کې هڅه وکړه چې نور اقوام نفې کړي او یوازې د اسلام تر نامه لاندې د طالبو پښتنو حاکمیت په ټول هېواد قایم کړي؛ خو نژدې پینځه کاله په پرله پسې توګه په ژبني او قومي تعصب کې راګېر وو طالبان دا خوب د خپل ځانه سره اوس د تورو غرونو په تورو سوړو کې پټ ګرځوي.

همدا راز نشنلیستي عصبیت د قدرت لپواله رباني دې ته وهڅاو، چې د خپلې اسلامي مقدسې ایډیالوژۍ په خلاف د نورو اقوامو په نفې کولو لاس پورې کړي او د خپلو ټولو تعهداتو په خلاف د واکمنۍ کرسۍ تر خپلې ملا کلکه وتړي. د یوې باوري سرچینې له مخې کله، چې رباني د خپلې سیارې واکمنۍ په وخت کې د ایران له یوه هیئت سره په ایران کې خبرې کولې؛ نو د هغوی ددې پوښتنې په ځواب کې، چې په کابل کې څومره پښتانه اوسي؟ او هغه ددې پر ځای، چې خپله سنګیني د یو افغان مشر په څېر ایرانیانو ته په ډاګه کړي برعکس ورته وایي، چې زما سره تعاون وکړئ، تر څو دوه کاله نور هم په کابل کې پاتې شم؛ نو دا پاتې پښتانه به هم له کابله وکاږم. او یا د همدې سرچینې له مخې په ازبکستان کې د یو ازبک هیئت د سوال په ځواب کې، چې د پښتنو تاریخ د کومه ځایه پیل کېږي؟ نو ددې په ځای، چې ووایي پښتانه اصلاً د زرګونو کلونو تاریخ لري او ددې خاورې اصلي بچیان دي او په دې ترتیب هغوی ته خپل ولس دروند او عزت مند معرفي کړي، نیشنلیستي او نژادي تعصب یې دا سې سترګې ورپټې کړې وې، چې په ډېره بې شرمۍ سره وایي، چې دا یو قوم دی، چې اصلاً د هندوستان څخه مهاجر شوی او د افغانستان په غرنیو سیمو کې یې ځای نیولی... او دا په دې خاطر، چې هغوی ته ځان نژدې کړي او تایید یې تر لاسه کړي او یو څو ورځې نور هم خپلې دغې کاذبې واکمنۍ ته دوام ورکړي؛ خو بالاخره ترې امریکایانو دا سې واخیسته، چې ان شاء الله بیا به یې په عمر کې هم ونه ویني. مګر دا، چې کوم نوی بادار پیدا کړي "وَتِلْكَ الاَيّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النّاسِ".

اسلام نه یوازې د یوې سپېڅلې ایډیالوژۍ په توګه بلکې د انساني ټولنې د پرمختیا او د هغوی د لارښوونې لپاره یو مکمل نظام رامنځته کړی. دغه نظام د انسانانو په یوې ټولنې، ملیت، ژبې، قوم او... پورې تړلی نه دی؛ بلکې د ټولې انساني ټګولنې لپاره راغلی د ژوند سیستم دی. انساني ټولنې ته د اسلام غږ د عربو یا عجمو کومې قبیلې ته غږ نه؛ بلکې د "يَا اَيُّهَا النّاسُ" غږ دی. په همدې خاطر قرآن کریم په ډېرو ځایونو کې د اسلامي ټولنې په جوړښت کې لومړی د انسان او بیا په مجموعي توګه د انساني ټولنې جوړښت تر بحث او څېړنې لاندې نیولی. څکه قرآن کریم وایي چې: تاسې مې ډلې ډلې او قبایل را پیدا کړي یاست تر څو یو له بله سره وپېژنئ؛ خو تر څنګ یې دا هم فرمایلي، چې په تاسو کې بهتر او غوره هغه دی، چې ډېر متقي او د الله(ج) نه وېرېدونکی وي. ددې تر څنګ د اسلام ستر پیغمبر(ص) فرمایلي دي، چې خبر اوسئ، چې ستاسې عرب په عجم او عجم په عرب یا تور په سپین او سپین په تور هېڅ ډول برتري نه لري. ټول د یو آدم(ع) اولاد یاست او آدم(ع) له خاورې څخه پیدا شوی دی. په تاسو کې بهتر هغه دی، چې ډېر متقي او د الله(ج) نه وېرېدونکی اوسي. ددې تر څنګ د اسلام ستر پیغمبر(ص) د تعصب او عصبیت نه، چې نن د اقوامو تر منځ د برترۍ او علویت لپاره مطرح دی سخت نفرت کړی او فرمایلي یې دي، چې: هر څوک عصبیت "ژبني، قومي نژادي... " وکړي زموږ نه،

نه دی، همدا راز فرمايي څوک، چې په عصبيت کې ومړ هغه زموږ نه، نه دی... البته په دې هکله ډېر شمېر آياتونه او احاديث شته، چې دا صحفه يې د نشر توان ممکن ونه لري. د اسلام يو ستر عالم ليکلي، چې نننی تهذيب، چې پرې د ځينو ټولنو، ټولنيز، سياسي او اقتصادي نظامونه چلېږي په درې بنسټيزو اصولو ولاړ دی، چې عبارت له دنيا پالنې (سيکولريزم) "نشنليزم" قوم پالنې او ديموکراسۍ يعني د خلکو حکومت څخه دی؛ خو ددې په مقابل کې د اسلامي تهذيب فکري، سياسي او اخلاقي اصول کاملاً د هغې پر خلاف دي، ځکه اسلام د سيکولريزم په مقابل کې د خدای(ج) د بندګي او اطاعت "طبيعي" ده، چې ددې څخه هدف د الله(ج) له اړخه رالېږل شويو او د هغه د پيغمبر له اړخه د تبليغ شويو ټولو قوانينو مراعات دي.

د نشنليزم يا قوم پالنې په مقابل کې انسانيت پالنې او په يوې محدودې ډلې ټپلې کې د رانغښتو په ځای د ټول انسانيت خدمت کول او دريم د خلکو په مقابل کې د الهي حاکميت موضوع مطرح ده. په دې اساس د اسلامي امت بنسټ او اساس په دغه درې اصولو، چې عبارت له توحيد يعنې د الله(ج) حاکميت، رسالت يعنې د رسول الله(ج) قيادت او دريم نيابتي حکومت يا خلافت باندې اېښودی دی. د غرب د سياسي نظريې په اساس جمهور په خپله بادشاه دی، چې پخپله به قانون جوړوي؛ خو د اسلام سياسي نظريه په جمهوري خلافت ولاړه ده. ځکه په دې نظام کې د هغه شريعت په اساس تلل کېږي، چې د الله له اړخه د هغه رسول اسلامي امت ته وړاندې کړي دي. "اسلامي سياست (187، 189) مخونه".

## *پيغمبر(ص)، نبي او هادي:*

همدا راز هر پيغمبر او نبي چې د الله(ج) له اړخه راغلی د پيغام رسونې تر څنګ يې اجرايي ځواک هم درلود. شاه ولي الله په دې هکله ليکلي، چې نبوت درې ارکان لري، چې عبارت دي له: حکومت او سياست، علم او حکمت، رشد او هدايت څخه. په نبي کې دا درې واړه ارکان په پوره توګه موجود وي. هغه د حکمرانۍ او سياست واک هم لري، که څه هم هغه ته عملاً د منظمې حکمرانۍ وخت په لاس ورنشي. **184**يم مخ.

اما دا بايد په ډاګه شي، چې هادي او لارښوونکی يوازې الله(ج) دی او پيغمبران ټول د هغه په هدايت او لارښوونې باندې نورو انسانانو ته د ښوونکو په څېر مقرر کړل شوي. په قرآن کريم کې په دې مسئله ډېر زيات بحث او څېړنه شوې. په خپله الله(ج) قرآن د هدايت او لارښوونې کتاب ګرځولی او ويلي يې دي، چې "هُدىً لِلْمُتَّقِيْنَ... او يا دا، چې مسلمان په خپل لمانځه کې وايي: اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ.. او يا دا، چې فرمايي: لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا.. او فَاَمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِنِّيْ هُدىً". په دې اساس هادي او هدايت کوونکی يوازې او يوازې الله(ج) دی؛ خو هغه خپل پيغمبران د همدغه هدايت سره يوازې پيغام رسوونکی نه؛ بلکې د اجرائيوي قوت او ځواک خاوندان هم ګرځولي دي. د انبياوو په تاريخ کې داسې کوم مثال نه پيدا کېږي، چې يو نبي دې يوازې په تبليغ اکتفا کړې وي؛ بلکې د هغه سره په جنګ کې د تقنيني او حکمي کارونو په تر سره کولو هم مکلف وو.

## د مسلمانانو د يو والي موضوع:

دا چې ولې د ايران مسلمانان د پاکستان د مسلمانانو سره او يا د سعودي مسلمانان د مصر د مسلمانانو سره په يوه واحد اسلامي سيستم کې نه شي را ټولېدای، د دين په فروعاتو کې د مجتهدينو له خوا په اعتباري توپيرونو پورې قطعاً اړه نه لري. ځکه لومړی دا چې د مجتهدينو تر منځ په فروعاتو کې دغه توپيرونه هماغه وخت هم موجود وو، چې ټوله اسلامي نړۍ د يوه خلافت لاندې اداره کېده او په فروعاتو کې دغه توپير اوس هم شته؛ خو ددې سره سره بيا هم مسلمانان تر يوه چتر لاندې ژوند کوي. د مثال په توګه په پاکستان کې د اسلام تر نامه لاندې د ټولو مذاهبو خاوندان که شيعه دي او که سني، يو ځای ژوند کوي، همدا راز په ايران کې هم، په ګران افغانستان کې همدا، اوس شيعه او سني ټول د يو چتر لاندې پرته له کوم مذهبي تبعيض نه د وروروليۍ په فضا کې ژوند تر سره کوي، او د سعودي او مصر د مسلمانانو تر منځ؛ خو مذهبي توپير او جدا والی هم نشته او په دې کې هېڅ شک هم نشته، چې که چېرې په اسلامي نړۍ کې د اوسنيو غاصبو نظامونو پر ځای، چې د صليبي حکماوو په مستقيم او يا غير مستقيم تعاون واکمنۍ ته رسګېدلي دي په اسلام پوه او د پرديو کړيو څخه آزاد عناصر حاکميت تر لاسه کړي؛ نو بيا به دا جغرافيايي پولې په کومو کې، چې اوس دغه ملتونه رانښکېل دي بې کاره وي.

که تاريخ ته وکتل شي؛ نو د اسلامي امت تجزيه او ټوټې ټوټې کېدل؛ خو د صليبي او کليسايي جنګونو نه وروسته صورت ونيو. دا هغه وخت و، چې کليسا او صليب د اسلام په مقابل کې هغه وخت يرغل پيل کړ، چې اسلام د اروپا په دروازه کې استقرار موندلی و، او بشريت، چې د کليسا د ظلم او استبداد نه په تنګ راغلی و، او تر څنګ يې نژاد پالنې او نشنليزم دې حد ته وده کړې وه، چې په نوم د اعلی نسل اسنانانو د ښکته نسل انسانانو ته د بشر په سترګه هم نه کتل، اسلام د خلکو تر منځ يو نوی منل شوی حقيقت و، او خلک د اسلام لور ته ډلې ډلې راروان وو. کليسا خپل ځان په حرج کې وليد او د اسلام په خلاف يې يلغار پيل کړ. د بله لوري کليسا، چې خپل ځانته يې يو نظام درلود او حاکمو سياسي نظامونو سره په اختلاف کې اخته و، د اسلام د مکمل سياسي، مذهبي او اخلاقي واکمنۍ نه په وېره کې وه؛ نو په دې يې بسنه ونه کړه او د خپل فرهنګي يلغار په جريان کې يې د قومونو تر منځ د تفريق او اختلاف روحيه تزريق او ترويج کړه په هغوی کې يې د قوم پالنې او يو د بل په خلاف د ملي ګرايۍ تر عنوان لاندې ددغو موضوعاتو تخم وشينده او ددغه تخم اوبه خور اوس هم کوي، تر دې حده، چې اوس يې راټولېدل ګران؛ بلکې ناممکن ښکاري. ددې تر څنګ يې په داسې حال کې، چې د خپلو ځانونو او ولسونو لپاره د ديموکراسۍ لاره اختيار کړه؛ خو په اسلامي امت او اسلامي هېوادونو کې يې د خپلو جاسوسي شبکو له لارې او خپل مادي تعاون او کومک په واسطه د يو شمېر مزدورو او پلورل شويو عناصرو په واکمن کولو سره هڅه وکړه تر څو په اسلامي امت کې دغه اختلاف نه يوازې په خپل ځای وساتي؛ بلکې نوره هم وده ورکړي. په دې اساس دا اند په خپل ځای بلکل غلط دی، چې وو ايو، چې د اسلامي نړۍ مسلمان وګړي د فقهي فروعي اختلافاتو په اساس تر يوه سيستم لاندې ژوند نه شي کولای؛ بلکې بايد داسې وويل شي، چې د اسلامي نړۍ واکمنان د اقتدار په لېونتوب کې د کليسا او صليب په جالونو کې داسې راګېر شوي، چې اسلامي امت ورڅخه د خلاصون

لار نه شي پيدا کولی. ددې تر څنګ يې د قوم، نژاد ، ژبې او... په داسې ناروغيو ککړ کړي، چې د خلاصون لار ميندل يې ګران دي او که څوک په کې د خپلې آزادۍ لپاره غږ پورته کړي؛ نو غږ يې هملته په يوه نوم او بل نوم خفه کيږي.

## د ږيرې موضوع:

د ږيرې په هکله، چې د کوم توهين نه ډک بحث يادونه "څاپي "کړې، هغه په هېڅ صورت منطقي نه ده. حقيقت دادی، چې د الله(ج) له اړخه ثومره پيغمبران، چې راغلي هغوی ټولو ږيرې درلودې طبيعي ده، چې د مکې مشرکينو هم د اسلام نه دمخه په يوه مذهب پورې تړاو درلود. هغه که ابو جهل و او که ابو لهب. ټول د اسلام نه دمخه د پخوانيو مذاهبو پيروان وو ، چې وروسته يې بيا د الله(ج) د عبادت په ځای د تيږو او بتانو پالنه او عبادت پيل کړ او په همدې خاطر، چې هغوی د الله(ج) سره په واکمنۍ، عبادت او ټولو نورو شرعي امورو کې نور خلک شريک ګڼل او لکه د نن په څېر د همداسې بت پالنې، قوم پالنې، تفوق او اعلی نسل په ناروغيو اخته وو ؛ نو ځکه ورته مشرکان وايي؛ خو د پخوانيو مذاهبو له مخې يې ږيرې هم درلودې. بايد په دې وپوهيږو ، چې يو مسلمان د الله(ج) عبادت او د هغه د احکامو د منلو او پلي کولو او اطاعت نه اخوا بله لار نه لري. که څوک په کې بله هره وړه يا غټه لار پيدا کول غواړي؛ نو هغه ته نوښت يا بدعت ويل کيږي، او بدعت په خپله په شرک منتج کيږي. د پيغمبرانو سره د مشرکينو په يوه تله کې اچول په خپله په شرک منتج کيږي. په دې هکله بدني عبادات او روژې نيول او يا نور عبادات هېڅ ځای نه نيسي. د اسلام د دين فقهاوو دا خبره په کلکه کړې، چې ټول هغه اعمال، چې د اسلام پيغمبر(ص) په تداوم سره کړي په يو مسلمان موکد سنت او واجب ګرځي. ږيره يو د هغو سنتو څخه ده، چې د اسلام پيغمبر يې په کلکه سپارښتنه کړې. څرنګه، چې په هغه وخت کې يهود او نصاراوو ، او مشرکينو هم ږيرې او بريتونه اوږدول؛ نو ددې لپاره، چې د مسلمانانو او د هغوی تر منځ فرق وشي؛ نو حکم وشو ، چې تاسو بريتونه وخريئ او ږيرې پرېږدئ. تر څو د نورو قومونو سره مو فرق وشي؛ خو هغوی، چې په دې هکله کمزوري ښودله او يا يې د بريتو په خرېيلو کې لږ څه سستي کوله؛ نو د خدای(ج) پيغمبر(ص) د داسې خلکو په هکله وفرمايل، چې: "مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ" يعنې څوک، چې د کوم قوم سره ځان مشابه کړي هغه د هغوی څخه دی. او دا حديث د هماغه وخته څخه را پدېخوا د ټولو مسلمانانو لپاره تنبيه ده. برعکس کله، چې صليب او کليسا وليدل، چې مسلمانانو ږيرې اوږدې کړې؛ نو د کليسا رهبانيانو خپلو پيروانو ته حکم وکړ، چې ږيرې لرې کړئ. او په ځای يې بريت پرېږدئ. همدا راز کليسا د مسلمانو ښځو د پردې په خلاف داسې تبليغاتي کمپاين پيل کړ، چې په نتيجه کې يې د ښځې ټول هغه بشري کرامت له منځه يوور، چې بايد درلودای يې. نن ښځه په اروپايي او امريکايي ټولنو کې د نارينه وو د لاس يوه د لوبو آله ده او د نارينه وو د شهواني غريزې د پوره کولو لپاره په هر ځای کې لکه د حيواناتو په څېر استعماليږي. کليسا غواړي د خپل همدغه تهذيب په لور اسلامي نړۍ هم راتاوه کړي. په دې خاطر د فرهنګي يلغار تر عنوان لاندې ټول هغه څه، چې د اسلام په خلاف يې لري، اسلامي نړۍ ته صادروي، او تر څنګ يې د اسلامي نړۍ مسلمان کم پوهه وګړي په خپل تهذيب او کلتور کې داسې را ګير کړي دي، چې خپل کلتور او تهذيب يې ترې بلکل هېر کړی. مګردا ، چې په هره غونډه او ټولنه کې، چې کښېني نو حتماً به د خپل کلتور د

ساتنې لپاره ټینګ وهي. اما نه په خپله په ده کې او نه؛ خو به یې په فامیل کې د خپل کلتور اثرات لیدل کېږي.

### لباس:

اما هغه څه، چې د پیغمبر(ص) د لباس په هکله یې "ځایي" اندېښمن کړی، باید عرض شي، چې په دې هکله هېڅ ډول حرج او اصرار نشته. ځکه د اسلام پیغمبر(ص) د مختلفو روایاتو له مخې چلتار هم تړلی، لونګۍ یې هم پر سر کړې. سر تور سر یې هم لمونځ کړی، وېښتان یې خرېیلي هم دي او پرېښي هم... په دې اساس په دې کې مسلمانانو فقهاوو کوم څه توضیحات نه دي ورکړي؛ خو که چېرې کوم کس وغواړي ټول هغه عبادات، چې د اسلام ستر پېشوا درلودل خپل کړي او ځان د هغې سره مشابه کړي؛ نو طبیعي ده، چې خیر به بیامومي. ځکه، چې د پیغمبر(ص) د حدیث سره سم یې عمل کړی دی.

### د غلامۍ مسئله:

دا باید په یاد ولرو، چې اسلام د همغه لومړۍ ورځې څخه د غلامۍ د سیستم کړی ورماتې کړي او د هغه جاهلي زمانې دود، کلتور او تهذیب یې په دې هکله ورمات کړ. که چېرې په ابتدایي وختونو کې د غسې څه موجود هم وو؛ خو د بهترینو عملونو څخه یو عمل هم دا و هر مسلمان، چې مالي استطاعت ولري او وکولای شي، چې یو غلام آزاد کړي؛ نو بهترینه صدقه یې کړې؛ خو کله، چې هلته په مدینه منوره کې اسلامي ټولنه جوړه شوه؛ نو بیا ددغې ټولنې د حاکمیت په اساس د غلامانو د غلامۍ ځنځیرونه هم ورمات کړل شول. د همدغه ځایه ده، چې اسلام ټولو انسانانو ته د غلامۍ نه د آزادېدو درس ورکړی، د هغه جاهلي زمانې سنتونه؛ خو اسلام ورمات کړل، ښځې او نر یې ټول مدنیت ته رهنمایي کړل، ټول انسانان یې آزاد وګڼل. د ټولو حقوق یې یو په بل یو شان رایج کړل او ټولو ته یې د ظلم، زور، ستم، بې عدالتۍ او محکومیت په خلاف د خلاصون او نجات لاره وښودله. غلامي په هماغه وخت کې، چې څومره محکومېده، نن په اصطلاح په مهذبه نړۍ کې هغومره نه محکومېږي. نن؛ خو په دغه مهذبه نړۍ کې غلامي د هر وخت نه زیاته او د هر وخت نه توهین آمېزه ده، منتها د غلامۍ شکل تغیر موندلی، یوازې په دغه عصري قرن کې د تور پوټکو د غلامولو او د افریقا د لویې وچې څخه په لومو کې د انسانانو د انتقالولو فلمونه همدا اوس زړه بوږنوونکې منظرې رامنځته کوي، او همدا اوس په ټوله غربي نړۍ کې د تور پوټکو د غلامۍ پېښې لکه د پخوا په څېر موجودې دي؛ خو تر څنګ یې د اقتصادي غلامۍ مرحله خپل اوج ته رسېدلې. نن د اسیا او افریقا د لویې وچې زیات هېوادونه د غربي نړۍ د داسې اقتصادي پورونو د بار لاندې کاږه شوي، چې د هېوادونو غاصب واکمنان به یې د غلامۍ پرته بله لار ونه لري. نن د درېیمې نړۍ څخه خام مواد (چې د انسانانو تعلیم یافته طبقه هم په کې شامله ده) غربي هېوادونو ته په ډېر ارزان قیمت باندې صادرېږي. او بیا بېرته همدغه پاخه مواد په ډېر ستر قیمت واردوي، او هغه هم د پور او سود په شکل کې. اسلام هر ډول غلامــــــــــــي محکومــــــــــــوي او آن تــــــــــــر دې، چــــــــــــې د ظـــــــــــالم

حکمران تر مخه د حق کلیمه ویل یا رښتیا څرګندول جهاد بولي.

## د افغانستان موجودیت:

د څاپي دا خبره په هېڅ ډول درسته نه ده، چې که چېرې پښتانه نه وای؛ نو افغانستان به نه و؛ بلکې په افغانستان کې ددې هېواد د آزادۍ لپاره د انګلیسي ځواکونو تر روسي سرو ځواکونو پورې ټولو افغانانو تاریخي رول په لږ څه کم او زیات سره لوبولی. د روسانو په خلاف په ستر اسلامي ملي قیام کې ټول افغانان د ایمان او شهادت په جذبې سره، پرته له قومي، نژادي او توکمي توپیر سره د جهاد په یوه سنګر کې جنګېدلي. واضح ده، چې پښتنو به د نورو په نسبت زیات رول لوبولی وي، او زیات وګړي به یې په شهادت رسېدلي وي؛ خو افغانستان د ټولو افغانانو واحد او ګډ کور دی او ټول افغانان په کې د اسلامي ورورګلوۍ د اصل په اساس د پتمن ژوند خاوندان دي. او د داسې پتمن ژوند لپاره دې ته اړتیا لري، چې په افغانستان کې ټول مېشته اقوام که لږکي دي او که ډېرکي. خپل ځانونه افغان وګڼي او یو په بل باندې د برترۍ او علویت لپاره د ژبې، قوم او نژاد د جاهلي خصلتونو په ځای د علم، پوهې او یو بل ته د خدمت د برترۍ او علویت شعار خپل کړي. هېڅ یو قوم او ژبه د نشنلیزم د شعار لاندې علویت نه شي تر لاسه کولای. تر څو، چې د هغه قوم وګړي په علمي، اقتصادي او سیاسي ډګرونو کې د هغې د ودې لپاره کار ونکړي. د همدې زیار نتیجه ده، چې نن انګلیسي، عربي، فرانسوي او فارسي ژبې یا خو په ټوله نړۍ او یا هم په سترو سترو منطقو باندې حاوي دي. د اسلام دین د ژبو زده کړه د اسلام د ستر پیغمبر د حکم په څېر معرفي کوي او خپلو پیروانو ته حکم کوي، چې د نورو اقوامو ژبې زده کړئ، تر څو د هغو سره د ښه تفاهم لپاره لاره پرانستله شي.

آیا د اسلام دین رښتیا هم د عربو فرهنګي یلغار دی؟ د "څاپي" دغه لیکنه، چې وایي د اسلام اصلي دین، چې په مکه او مدینه کې نازل شوی و هغه په مدینه کې خاورو ته سپارل شوی او دغه او سنی دین د عربو فرهنګي یلغار دی. کاملاً د هغه په جهالت او ناپوهۍ باندې دلالت کوي. ځکه له یوه اړخه هغه د همدغه دین له مخې د خپلې لیکنې په لومړیو کرښو کې استدلال کړی او بیا یې وروسته په ټول دین د بطلان لیکه راښکلې ده. لوستونکي نه پوهېږي، چې ددې جملې څخه مقصد څه دی؟ د اسلام دین؛ خو هماغه دین دی، چې په مکه او مدینه کې نازل شوی او بیا یې په مدینه کې د لومړنۍ اسلامي ټولنې بنسټ کېښودل شو. او د هغې وروسته نورې نړۍ ته په خپله د اسلام د ستر پیغمبر په وخت کې او هم د هغې وروسته د هغې د خلفاء راشدینو او نورو مسلمانانو له خوا ټولې نړۍ ته ورسېد. نن د اسلام د دین رڼا په ګرده نړۍ کې خپره ده، په دې هکله مسلمانو او غیر مسلمانو علماوو خپل تحقیق او څېړنو ته دوام ورکړی او د اسلام دین د حقانیت او علمیت په هکله نوي انکشافات کوي. او ګڼ شمېر هغه انسانان، چې په اصطلاح د متمدن غرب د اخلاقي زوال نه زړه بدي شوي او د انساني کرامت او حرمت په لټه کې دي، د خپل ځان لپاره د خلاصي لاره اسلام ګڼي. یو کوچنی مثال یې د هغې ښځینه ژورنالستې دی، چې د طالبانو د زوال په وروستیو ورځو کې په جلال آباد کې لس ورځې زنداني شوې وه او هلته یې د اسلام په هکله لومړنۍ مطالعه په هغه لږ وخت کې تر سره کړې وه، او بیا په لندن کې یې د پوره تحقیق او څېړنې وروسته د اسلام دین قبول او خپل ځان یې مسلمان اعلام کړ او همداسې د اسلام دین داسې یوه پدیده ده، چې د انسانانو تر اخري وګړي پورې به د ځمکې په مخ موجوده وي، او دا ځکه، چې ددې دین رالېږونکی او جوړوونکی الله(ج) دی او الله(ج) تل پاتې، ژوندی او حَي او قیوم

دی.

که چېرې ددې جملې څخه ستاسو مقصد د پیغمبر(ص) وفات وي او فکر کوئ، چې د پیغمبر نه وروسته دین پاتې نه دی، او آیا دا، چې ستا د خلاصې نه تر مستخصله پورې په کتابونو کې داسې څه له نظره تېره شوې وي؛ نو دا ستا د نظر تنګ والی، د علم او پوهې کمښت او د پوچو او میان تهي نظریاتو په تنګنا کې د اسلام د دین په هکله سوچ او فکر او بالاخره د اسلام څخه په مکمله توګه لرې والی او عقده ښيي، چې ته یې دې ته وهڅولې تر څو د دین په هکله داسې کلیمات استعمال کړې. الله(ج) فرمایي، چې نن مې ستاسې دین تاسې ته تکمیل کړ او په تاسې مې خپل نعمت "د اسلام دین" تمام کړ او تاسې ته مې د اسلام دین غوره کړ. ددې آیت له مخې د اسلام دین د الله(ج) له اړخه پیغمبر(ص) راوړلی، په خپله پیغمبر(ص) ددغه دین د پلي کولو، عملي کولو، تشریح کولو او خلکو ته د رسولو ستر رسالت په غاړه درلود؛ خو په خپله پیغمبر ددې دین موجد او خالق نه دی؛ بلکې ددې دین خالق الله(ج) دی د پیغمبر د وفات نه وروسته د الله(ج) کتاب او د پیغمبر(ص) سنت په پرله پسې توګه په انساني ټولنه کې ګردش کوي او د زده کړې او تحقیق لپاره یې د ریسرچ ستر ستر مرکزونه، نه یوازې په اسلامي نړۍ کې؛ بلکې په غربي نړۍ کې هم، کلونه کلونه راهیسې پرانستي او کار کوي؛ خو تر اوسه پورې د غربي پوهانو د ډلې څخه، چې د اسلام په مطالعه مصروف دي یوه هم دغسې نظر لکه تاسې، چې د نشنلیزم د تنګنا نه راوښتلی نه دی ورکړی. "

دا وه د ښاغلي "مومند" لیکنه، چې کټ مټ ولیکل شوه. ددې لیکنې په ځواب کې ما هم یو څه ولیکل او د دعوت خپرونې ته مې واستول؛ خو په دعوت کې لا تر اوسه پورې نه ده خپره شوې. هغه څه، چې ما لیکلي دا دي ګران لوستونکي یې په لاندې ډ ،ل مطالعه کولی شي:

# آیا هر دین په خپل بنسټ کې نیشنلیزم دی؟

د پورتني سر لیک لاندې ښاغلي زلمي "مومند" د دعوت خپروني په 141 ګڼې کې زما د "هر دین په خپل بنسټ کې نشنلیزم دی" لیکنې پر خلاف په خپلې انتقادي لیکنې کې نشنلیزم ته ډېر زیات بد او رد ویلي او زه یې هم ښکنځلی یم، چې ګڼي ما به نعوذ بالله کفر ویلی وي او باید توبه وباسم. "

د خدای بخښلي ملنګ جان وینا ده:

ځوک به په رښتینه د رښتینو طرفدار شـــي
مـــه وایه رښتیا راباندې سر به مې په دار شي

تر دې دمخه، چې زه د رښتیاو دغه دار ته ودانګم او زلمي "مومند" ته څه ولیکم، غواړم د ګناهونو په هکله څه ووایم: یو انسان که هر څومره له ګناهونو پاک او سپېڅلی هم وي؛ خو د لوی خدای(ج) په وړاندې مجبور دی توبه وباسي او بخښنه وغواړي. همدغه سبب دی، چې لا پیغمبرانو او انبیاو هم همېشه د لوی خدای(ج) په وړاندې له شیطان نه پناه او له ګناهونو څخه ژغورنه او بخښنه غوښتله. زه، چې یو ډېر کوچنی انسان او یو ډېر ستر ګناهګار یم، ولې به توبه نه وباسم او له لویه خدایه به بخښنه نه غواړم؟ له دې امله په هر لمانځه کې له لویه خدایه غواړم، چې ماته د سمې لیارې هدایت وکړي، د شیطان له وسوسو مې وژغوري او ګناهونه مې راوبښي. او په هر لمانځه کې هم د لوی خدای(ج) پر محبوب استازي درود استوم. د لمانځه سره جوخت د روژې فریضه هم ادا کوم؛ خو د نصاب خاوند نه یم، چې زکات ورکړم. حج راباندې هم فرض شوی نه دی، ځکه، چې شتمن نه یم؛ خو د ثواب لپاره نیت لرم یو ځل د مبارکې کعبې زیارت ته ورشم. له فرایضو او وجایبو نه وروسته په حسناتو او صدقاتو کې هم هلې ځلې کوم، چې له چا نه وروسته پاتې نه شم. قاتل نه یم، د چا حقوق مې نه دي غصب کړي. د چا پر ناموس مې بلوسه نه ده کړې. وطن پلورونکی نه یم، او ولس مې پر چا نه دی پلورلی. دروغ مې نه دي ویلي، او ځوک مې نه دي دوکه کړي. خدای(ج)، قرآن او پیغمبر ته مې خیانت نه دی کړی. د اسلام په نامه هېڅکله او هېچرته ناوړه استفاده مې نه ده کړې. پر خپل لاس مې ګټلي او په خپله مې خوړلي، چې خپل دغه ټول کړه وړه مې د اسلام د مبارک دین د احکامو سره سم ګڼلي دي. هڅه مې کړې، چې په دغه لیاره کې د لاپسي پراخې پوهې او کړنې خاوند هم شم. ځکه، چې پوهه او د پوهې سره جوخت سمه کړنه د اسلام د دین له اصولو څخه شمېرل کېږي؛ نو زړه مې پر ښاغلي زلمي "مومند" باندې وسوځېده، چې عاجز د مذهبي تعصب د افراط له امله که ځوک، چې پر خره سور وي او خر نهویني هم د نشنلیزم غندنه کوي او هم ځان زلمی "مومند" معرفي کوي. که چېرته نشنلیزم دده په ګروهه دومره بد او د غندنې وړ وي؛ نو بیا ولې یې پر خپل ځان د پښتو نوم ایښی او ځان یې د پښتون په ټبر کې شمېرلی؟ هغه ته؛ خو د هغه د ګروهې له مخې لازمه وه، چې د پښتون د نوم پر ځای د عربي نوم غوره کړي او د پښتون د ټبر پر

ځای کوم عربي ټبر ته يې ځان منسوب کړی وای.
ځکه، چې د زلمي "مومند " په څېر د متعصبو مذهبي ډلو په ګروهه عربي نوم، عربي ژبه، عربي فرهنګ او عربي ټبر خو د اسلام د دين بېخ او بنسټ ګڼل کېږي. لکه، چې په دې هکله د زلمي "مومند " نه مخکې د سرباز "صافي " په نامه هم يو چا زما د نامه د "څاپي " پر توري نيوکه کړې او هغه يې د عربي ژبې او فرهنګ سره په دښمنۍ کې ګڼلی و.
په هر حال مانه غوښتل د زلمي "مومند " د نيوکې په هکله څه وليکم ځکه، چې هغه راته د هغې د ليکنې له مخې ډېر زيات افراطي متعصبه مذهبي وبرېښنده، چې متعصبه مذهبيان د دې حق چا ته نه ورکوي څو خپل ديني نظر هم ووايي. دلته مې يو متل را په ياد شو:
يو سړي له يو چا نه وپوښتل، چې نوم دې څه دی؟ هغه وويل: خدای، پوښتونکي ورټوپ کړل او له ستونې يې کلک ونيو او په مرګ يې تهديد کړ، چې ته لا ځان ته خدای هم وايې؟ هغه سړي ورته وويل: نه وروره داسې نه ده، تر بيردي خو مې پرېږده. زما نوم خدای نه دی؛ بلکې خدای بيردي دی. "
د متعصبه افراطي مذهبيانو عادت هم همدغسې وي، چا ته تر بيردي چانس نه ورکوي؛ خو کله، چې مې د زلمي "مومند " د ليک دغې کرښې ته پام شو، چې دين او مذهب ته يې په کې په يوه سترګه کتلي دي او دا دواړه يې د لوی خدای(ج) له اړخه ګڼلي، د پارسي ژبې شاعر دغه وينا را په ياد شوه، چې وايي:

اگر بینی که نابینا و چاه است
و گر خاموش بنشینی گناه است

ځان مې مجبور وګانه، چې يو څه ورته وليکم. ښاغلي زلمي "مومند " د خپل ليک په مقدمه کې داسې ليکلي دي: دين او مذهب يوه عقيده او عملي لاره ده، چې د انساني ټولنې د بهبود او لارښوونې لپاره د الله(ج) له اړخه وضع شوی او د پيغمبرانو او انبياوو په واسطه ټولنې ته وړاندې شوی. "
دا وه د ښاغلي زلمي "مومند " د ليکنې کټ مټ يوه برخه. نومړي په روښانه توګه دين او مذهب دواړه د لوی خدای(ج) له اړخه ګڼلي او په خپل اوږده ليک کې يې لا څو څو ځايه هم مذهب ته د دين په سترګه کتلي دي. ښاغلي زلمي "مومند "، چې په خپلې ليکنې کې په اسمانونو کې د آدم عليه السلام او د ابليس لعين قصه په خوږه ژبه وړاندې کوي؛ خو په ځمکه کې د دې توان نه مومي څو د دين او مذهب تر منځ توپير ووينې. سره د دې، چې زما په پخوانۍ ليکنې کې د دين، ملت، امت او مذهب په هکله د اسلامي نړۍ د علماوو دريځ هم وړاندې شوی و. په هغه ليکنه کې مې روښانه کړې وه، چې دين په لغوي معنی عقيده او ملت ته وايي، او همدارنګه په کې ويل شوي وو، چې: دين لوی خدای(ج) ته ملت او امت پيغمبر ته او مذهب مجتهد ته منسوب دی. "زلمي "مومند "، چې مذهب لوی خدای(ج) ته منسوبوي ښايي د هغه به خپل ابتکار وي؛ خو زه غواړمه په دې ځای کې د لا پسې روښانتيا لپاره نور هم تم شم.
ښه مې په ياد دي کله، چې د شپږو کلونو شوم، د پلار له خوا د جومات ملا صاحب ته وروستل شوم، چې لمونځ زده کړم. ملا صاحب راته لمونځ او د لمانځه قواعد را زده کړل او بيا يې په غوږونو کې راته دغه څو ټکي هم راننو بستل چې:

که چا درنه وپوښتل، چې بنده د چا یې؟ووایه، چې بنده د لوی خدای(ج) یم. که چا درنه وپوښتل، چې په ملت د چا یې؟ووایه، چې په ملت د ابراهیم خلیل الله یم. که چا درنه وپوښتل، چې په امت د چا یې؟ووایه، چې په امت د محمد مصطفی یم. که چا درنه وپوښتل، چې په مذهب د چا یې؟ووایه، چې په مذهب د امام اعظم ابو حنیفه رحمآ الله علیه یم. که چا درنه وپوښتل، چې ولې په مذهب د ابوحنیفه یې؟ووایه، چې په دغه مذهب کې افراط او تفریط نشته او یوه منځنۍ لاره ده؛ خو ملا صاحب ماته دا ونه ویل، چې په مذهب د لوی خدای یا د پیغمبر یې. یوازې دومره یې وویل، چې بنده د لوی خدای(ج) یې او بس. کله، چې را لوی شوم؛ نو ما ددغو پورتنیو څو ټکیو په هکله، چې د ګروهې بنسټ ګڼل کېږي. د لاپسي پراخي پوهې د لاس ته راوستو په لیاره کې د توان په اندازه اسلامي فقهه ولوستله بیا مې اسلامي تصوف او اسلامي تاریخ کې مطالعه او وړپسې مې د نړۍ د ادیانو په هکله د خپلې مطالعې لړۍ اوږده کړله، چې اوس اوس دې ځای ته را رسېدلی یم، چې ووایم:

لوی خدای(ج) په خپلې ازلي ارادې سره د ابراهیم خلیل الله حنیف ملت په دغو دریو امتونو وېشلی دی: موسوي امت، عیسوي امت او محمدي یا اسلامي امت. کوم مذهب، چې په دغو امتونو کې د هغوی د لومړیو لارښوونکیو نه په وروسته زمانو کې راټوکېدلی او لا تر اوسه موجودیت لري. هغه د هغه امت د علماو له خوا د ځینو ټولنیزو او سیاسي شرایطو له مخې په شریعت کې د اجتهاد له لیارې رامنځته شوی دی. یعنې: امت د ملت له بدن څخه د لوی خدای(ج) د هدایت له مخې او د وحې له لیارې را جدا شوی دی. وګورئ د المائدآ سورآ **48** آیت او د النحل سورآ **123** آیت او داسې نور. مګر مذهب د امت له بدن څخه د مجتهدو علماو له خوا را جدا شوی؛ نو ځکه مذهب مجتهد ته منسوب دی، نه لوی خدای(ج) یا پیغمبر ته. د المائدآ سورآ د **48** آیت د صراحت له مخې د امتونو تر منځ یوازې اختلاف روا دی نه د ښمنې. مګر په دغو امتونو کې، چې کوم مذاهب راټوکېدلي دي هغوی د امتونو تر منځ د اختلاف په ځای ډېره ستره دښمني او مخاصمت پیل کړی، چې دغه چال چلند ددې درې واړو امتونو په منځ کې داسې جداوالی رامنځته کړی، چې د یوه ملت په څېر د بیا رامنځته کېدو هډو هېڅ سوچ او فکر هم نه تر سترګو کېږي. یهودیان فلسطینیان وژني او فلسطینیان یهودیان. همدارنګه د عیسوي امت متعصبه مذهبي ډلې، چې همدا اوس یې په سر کې بوش ودرېدلی د اسلامي امت متعصبه مذهبي اسامه په بهانه لګیا دی د اسلامي امت بې ګناه وګړي وژني، چې اسامه هم د عیسوي امت پر بې ګناهو وګړو مرګاني حملې کوي. په دې جریان کې هېڅ یو یې د خدای(ج) د هدایت سره سم، چې اختلاف باید د خبرو له لیارې حل شي په اختلاف معتقد نه دي او لګیا دي د مخاصمت او جګړې له لیارې غواړي ابراهیمي ملت، چې درې ګونی امت دی محوه او نابود کړي. مذاهب، چې له بنسټه د سیاست له خېټې رازېږېدلي، د تاریخ په اوږدو کې هم تل د سیاست د څوبارې په توګه استعمال شوي دي. تېرې پېړۍ په پرېږدو او همدا په افغانستان کې د جهاد د دوران څو کلونو ته به نظر واچوو.

**1-** افراطي متعصبه مذهبیانو په افغانستان کې په زرګونه افغاني ځوانان یوازې په دې ګناه ووژل، چې دعای قنوت یې نه وه زده. ښایي زلمي "مومند" به هم اورېدلي وي.

**2-** افراطي متعصبه مذهبیانو د ننګرهار د خېوې ولسوالۍ ښځې او نجونې د جنګي غنیمت په نامه او په دې دلیل، چې پیغمبر هم همداسې عمل کړی دی پاکستان ته وروستل او د وینځو په څېر یې وپلورل، چې ښایي زلمي مومند به هم اورېدلي وي.

3- افراطي متعصبه مذهبيانو د تورخم يو ټولي امنيتي عسکر، چې کمونيستي حکومت نه اوښتي او مجاهدينو ته تسليم شوي وو، هم ټول ووژل او مړي يې د تورخم پر سرک واچول.
4- کله، چې طالبانو په کابل کې د عبدالعلي مزاري د قوماندانۍ مرکز ونيو، له هغه ځايه يې يو شمېر زياتې لوڅې او بربنډې ښځې او نجونې راووېستلې، چې دغه مرکز هم د افراطي متعصبه مذهبيانو مرکز و. ښايي زلمي مومند به هم اورېدلي وي.
5- افراطي متعصبه مذهبيانو د کابل په ښار کې د ډېرو بې ګناهو انسانانو پر سرونو مېخونه ټک وهل او د ډېرو بې ګناهو ښځو تيونه يې پرې کړل او د ډېرو بې ګناهو انسانانو د مړيو د نڅا فلمونه يې هم جوړ کړل، چې ښايي زلمي مومند به هم اورېدلي وي.
6- همدا اوس هم داسې متعصبه افراطي مذهبيان شته، چې هېڅکله د خدای(ج)، د خدای(ج) د رسول او د قرآن شفاعت نه مني؛ خو د علي، حسن يا حسين نوم، چې ورته واخلې له سر او مال، ننګ او ناموس نه به هم در تېر شي.
7- مذهبيانو د شبرغان د ليلي په دښته کې زرګونه طالبان ژوندي تر خاورو لاندې ښخ کړل، چې ټوله نړۍ ترې خبره ده.
8- مذهبيانو، چې همدا اوس پر افغانستان باندې د "حکومت اسلامي" په نامه هم واکمن دي، په زرګونه طالبان د کندز، مزار او شبرغان په لاره کې په کانتينرونو کې ووژل.

داسې او دا رنګه نور ډېر افراطي مذهبيان شته، چې زلمي مومند يې مذهب لا د خدای(ج) له اړخه ګڼي. وګورئ لکه څرنګه، چې دغه ټول مذهبيان د سياست له خېټې زېږېدلي دي، د دوی له مذهب نه هم سياسي ګوندونه جوړ شوي دي. څرنګه، چې هغوی له دين نه څه وقوف نه لري، دين هم د هغوی له مذهب سره څه اړخ نه لګوي. په افغانستان کې مو وليدل، چې تر يوې زمانې پورې افراطي متعصبه مذهبيان د يوه سياسي واحد ګوندونو په توګه وکارول شول؛ خو، چې کله د سياسي واکمنانو ګټو، روا وګڼله پر هغو ګوندونو باندې د خراپي نوم کېښودل شو او د شر او فساد د عاملينو په توګه سپک شول. دويمې ډلې، چې د طالبانو په نامه د هغوی ځای ونيولو هغوی هم د ګوندونو په توګه کار پيل کړ. د خراپو او د ګوندونو لانجه لا روانه وه، چې ستر سياسي واکمن په غړمبا شو او چيغې يې کړلې، چې: ګوندونه؛ خو نور ګوندونه نه دي؛ بلکې غوبارې دي، چې زموږ غوايان چيچي او بايد نابود شي. هماغه و، چې په غوبارو پسې راغلل او داسې يې وټکول، چې پاغوندې يې لا د کيوبا تر ګوتنانامو پورې هم ورسېدلې. مګر ځای يې هماغو پرونيو د شر او فساد خراپو ته وسپارلو، چې د ډېرې خواشينۍ ځای دی.

وايي چې: "د تارو يې کيزه وي، د هغه آس به څه مزه وي؟".

د خراپو د واکمنۍ دويمه دوره، چې امريکايي بې 52 ډوله الوتکو په کې مارشال او قهرمانان زېږولي بيا هم د افراط او تفريط، د شر او فساد نه ډکه دوره وختله.

په هر حال د افراطي مذهبيانو د جهاد نتيجه؛ خو اوس په همدې ځای او په همدې توګه د نړيوالو تر سترګو کېږي. وبه ګورو، چې په راتلونکو مياشتو او کلونو کې د اوسني اسلامي دولت له ګوندونه به ستر واکمن بله بده بلا جوړه کړي او که نه؟ زما خبره دلته داده، چې داسې نظامونو ته نه زه ديني نظام ويلی شم او نه هم د اسلام دين هغه ته اسلامي نظام وايي. ځکه ددې نظام هر واکمن په زرګونه بې ګناه

مسلمانان په قصدي او عمدي توګه وژلي دي. کوم، چې د قرآني آيت د صراحت په مخ چا، چې کوم مؤمن مسلمان په قصدي او عمدي توګه وژلی وي، هغه هېڅکله د لوی خدای(ج) له خوا د بخښلو وړ نه دي او د جنت مستحق نه کېږي. څوک، چې د جنت مستحق نه وي؛ نو هغه به څنګه دديٍ وړتيا ولري، چې اسلامي نظام جوړ کړای شي لا، چې د مسلمانانو په وژلو هم بوخت وي؟ هيله ده، چې ښاغلی زلمی مومند او د هغه ملګري به د بصيرت په سترګو د دين او مذهب تر منځه توپير وويني.

ښاغلي زلمي "مومند" په خپلې ليکنې کې طالبان د ناسيوناليستانو په نومونو نومولي او د هغوی ټول کړه وړه يې ناسيوناليستي ګڼلي دي، چې زه يې دديٍ لاندې ټکيو پر بنسټ ردومه:

1- يوه ډله، چې د مذهب پر اساس يو لوی ملک د ړيرې په نامه يرغمل ونيسي او پر خلکو په زوره ړيره او ږډه کړي؛ نو هغه به څنګه ناسيوناليستان وي؟
2- يوه ډله، چې په هر ګام کې يې ناسيوناليستان ټکولي دي، هغوی به څنګه ناسيوناليستان وي؟
3- په ايران کې خميني د اسلام نارې وهلې؛ خو کله، چې يې وليدل ايران ته خطر متوجه دی، اسلام ته يې شا کړله او ايران ته يې مخ. مګر په افغانستان کې طالبانو د خطر په مهال کې وطن ته شا کړله او مذهب ته مخ. آيا ناسيوناليستان داسې وي يا که هغسې؟
4- وګورئ پيغمبر(ص) هغه بتان مات کړل، چې عبادت يې کېده. مګر د عربو په خاوره کې لا تر اوسه پورې ډېر ستر ستر بوتان پاتې دي، چې چا ورته د دښمنۍ په سترګه لا څه، چې د مخالفت په سترګه هم نه دي کتلي. عربانو خپل بتان د پيغمبر(ص) په قول د عبرت نښې وګڼلې او ويې ساتلې. مګر زموږ د سيمې زاړه او متروکه بتان يې تل د کفر او جهالت نښې وګڼلې او زموږ د سيمې پر متعصبو افراطي مذهبيانو يې ماتې کړلې.

دغه او داسې نور اعمال دي، چې په روښانه توګه ښيي څه، چې طالبانو غوښتل او کول هغه نه يوازې د اسلام په دين پورې اړه نه لرله، چې په ناسيوناليزم پورې يې هم څه تړاو نه لاره. خو د عربو د فرهنګ د تعميم په لاره کې سوچه مذهبيانه وو. داسې ډلې لا په تېرو زمانو کې هم زموږ په سيمه کې راميدان ته شوې وې، او په راتلونکو زمانو کې به هم دديٍ امکان ډېر زيات وي، چې په بيابيا توګه په مختلفو نومونو او شکلونو رامنځته شي.

دا يوازې افغانستان نه دی، چې د دا رنګه پېښو شاهد ګرځېدلی دی؛ بلکې په ايران کې هم د خميني نظام د مذهب پر بنسټ وکارول شو، چې ډېر ښه وکارول شو.

دين پراخه لمن لري؛ خو مذهب لکه څرنګه، چې په ايران او افغانستان کې وازمېيل شو د ډېرې تنګې حوصلې او متعصبې سينې خاوند دی. کوم جنايتونه، چې د شيعه او سني په نامه لا زموږ د سترګو په وړاندې په ايران، افغانستان او پاکستان کې همدا اوس اوس په تکرار سره پېښ شوي او لا به هم پېښ شي، د مذهب او مذهبيانو کار دی، چې هېڅکله په دين او دين مينو کسانو پورې تړاو نه لري.

ښاغلي زلمي "مومند" په خپلې ليکنې کې د ړيرې په هکله هم ښې خوږې خبرې کړې دي؛ خو دديٍ متل په اساس چې: "دوست دې ژړوي او دښمن دې خندوي". ما د دوست په جامه کې د ړيرې په هکله په هماغه وخت کې ترخې خبرې کړې وې، چې لا زموږ زلمی "مومند" يې هم وژړاو، هاغه نېک او معقول حرکت، چې زلمي "مومند" په خپلو خوږو خبرو کې ورته اشاره کوي د عمل په ساحه کې هېڅ نه

لیدل کېږي. ځکه؛ نو د ږیرې مسئله ډېره پېچلې ده. که مو په یاد وي د جهاد په دوران کې په پېښور کې هېچا دا حق نه لاره، چې بې له ږیرې د شمشتو کمپ ته ورشي. داسې پېښې هم وشوې، چې د کوم مهاجر نژدې خپلوان به په شمشتو کې مړ و؛ خو هغه به د ږیرې د نه لرلو له امله پر جنازه نه شو سوبېدلی. بیا، چې کله د طالبانو وار راغی، هغوی؛ خو د افغانستان هغو ټولو برخو ته، چې تر واک لاندې یې راغلې وې، هېچا ته دا حق نه ورکاوه، چې بې له ږیرې ورشي. موږ د جهاد په دوران کې دغو مذهبي ډلو سره هم په دې هکله ډېر زیات په لانجه کې وو. هغوی به چاته، چې ږیره نه لرله، لا د کافر خطاب هم کاوه. مګر خوښي په دې کې ده، چې "زمانه" خپل کار کوي او هېڅوک په یوه حال کې نه پرېږدي. داسې مهال هم راغی چا، چې مسلماني یوازې په ږیره ګڼله او غوښتله، پر هغوی نور د ږیرې په نامه ډالرې او کلدارې بندې شوې، مجبور شول، لکه د نورو بې ږیرو په څېر کار وکړي او د کار له لیارې نفقه پیدا کړي. دا، چې کار والاو به ږیرور ته کار نه ورکاوه؛ نو هغوی هم مجبور شول د نفقې د پیدا کولو لپاره له خپلو ږیرو تېر شي. په دې توګه په ډېره لږه موده کې د ږیرو مسلمانانو خپلې ږیرې وبایللې او لکه موږ غوندې بې ږیرې شول. نور؛ نو زموږ وار و او ورته به مو ویلې، چې څه شوه هغه د ږیرې مسلماني؟ د هغوی ځواب یوازې دا و، چې: موږ نه پوهېدو، او اوس پوهېږو، چې مسلماني په زړه ده نه په ږیره.

دلته زه د زلمي "مومند" خبره خپله ګڼم، چې ږیره لرل له حسناتو څخه ده. ما هم په خپل یو شعر کې لا پخوا داسې ویلې وو:

ږیره که ګانه د سړیتوب مـــې ده
مه وایه چې لنډه یا اوږده یـــې کړه

جبر او اکراه، زجر او تکلیف، بند او ځنځیر له سیئاتو څخه شمېرل کېږي، چې طالبانو له دغې لیارې پر خلکو ږیرې اوږدولې. زما په اند د سیئاتو له لیارې د حسناتو رواجول به هم په هېڅ یوه دین کې روا نه وي. زموږ بد مرغي په دې کې ده، چې پر موږ باندې افراطي مذهبیانو تل د سیئاتو له لیارې حسنات رواج کړي دي.

د ږیرې په هکله د طالبانو نیت متعصبه مذهبي نیت و نه د میني نیت. کله، چې په نیت او عمل کې جبر او اکراه ځای ولري حسنات هم په سیئاتو بدلېږي؛ لکه، چې هماغسې هم وشول. طالبانو پر خلکو د سیئاتو له لیارې، چې: وهل، ټکول، بند او ځنځیر و، ږیرې ګاوږدې کړلې؛ خو، چې کله د طالبانو واکمني ړنګه شوه، هغه په زوره اوږدې شوې ږیرې هم د تنفر او کرکې په سیند کې لاهو شوې.

په پای کې د روان بحث لمنه په دې ټکیو کې رانغاړم:

1- دین په لغوي معنی کې عقیده او ملت ته وایي، هغه مذهبیان، چې عقیده مني او ملت ردوي، یا هغه ملت غوښتونکي، چې ملت مني او عقیده ردوي، په روښانه توګه په غلطه او خطا تللي دي. زما په اند دغه دواړه خواوې دې په خپلو تګلارو کې نوې کتنه وکړي، او ځانونه دې د دین په بنسټ، چې عقیده او ملت دي، عیار کړي. ځکه، چې عقیده او ملت یعنې: "دین" د انسان د معاد او معاش بنسټ دی کوم، چې بې له معاد او معاشه ژوند څه ارزښت نه لري. نېکمرغه به هغه کسان وي، چې هم معاد ولري او هم معاش، چې دا دوه توکي یوازې د دین د اصولو په خپلولو سره

خپلېدای شي او بس.

2- د ابراهیمي حنیف ملت د امتونو تر منځ، چې کومې دښمنۍ رامنځته شوې او ابراهیمي ملت یې د انهدام د خطر سره مخامخ کړی دی، دا د هغو مذاهبو د چال چلند نتیجه ده، چې په دې امتونو کې راټوکېدلې او واکمنه شوې ده. زما په اند د ملت د تحفظ په خاطر ضروري ښکاري، چې د ملت د امتونو څخه د دین په اصولو مینو پوهانو او عالمانو یوه غښتلې جرګه جوړه شي، ځو دغه جرګه د امتونو تر منځ هغه ټول اختلافي موضوعات، چې پرې دښمني او جګړې رواني دي، د خبرو له لیارې په سوله ییزه توګه حل او فصل کړي او د افراطي متعصبه مذهبي ډلو دجګړه ییز سیاست مخه دې ونیسي. ځکه، چې همدا اوس د افراطي متعصبه مذهبي ډلو جګړه ییز سیاست د نړۍ سولې او امنیت ته ستر ګواښ پېښ کړی دی.

*په نړۍ کې د سولې او هوساینې په هیله.*

*مبارز "څاپې"*

*12/12/2002 بن، جرمني.*

زما دغه پورتنۍ څوابیه لیکنه، چې ما د دوه زرم کال د دسمبر په میاشت کې د دعوت د خپرونې په پته استولې وه، سره د دې، چې زه ډاډه یم، چې هغوی ته رسېدلې ده؛ خو تر اوسه پورې د دعوت په خپرونه کې خپره نه شوله؛ نو غوره مې وګڼله، چې د موضوع د لا پسې روښانتیا په هیله لا پسې خپرنیزې څرګندونې وشي او هغه خبرې لا پسې سپینې شي، چې لا هم څرګندې شوې نه دي او په سیمه کې د واکمن ذهنیت له وېرې د هېرې په تیارو ګوټونو کې د پېښو د ډېلو برستنو لاندې پراته دي.

# نیشنلیزم، ناسیونالیزم: یا ملت غوښتنه، ملت روزنه، ملت پالنه او ملت جوړونه
# د قرآن کریم له نظره

*الف: ژبه:* د الروم سورآ په 22 آیت کې داسي لولو:

*ترجمه:* "او ځني له نښو د قدرت دد غه الله پیدا کول د اسمانونو او پیدا کول د ځمکې او اختلاف دی د ژبو ستاسې او بل اختلاف دی د رنګونو ستاسې. بېشکه په دغه اختلاف کې خامخا ډېرې نښې د قدرت دي لپاره د عالمانو پوهانو".

*تفسیر:* ګرد "ټول" انسانان يې له یوه مور او پلار څخه پیدا او سره يې مخلوط او مېشته او د ځمکې پر ټولو نقاطو کې يې خپاره "خواره" کړل، د هر یوه ژبه او وینا يې سره بېله کړه. که د یوه مملکت سړی بل ملک ته ورشي د ژبې په اعتبار محض پردی او اجنبي ښکاري. بیا وګورئ، چې د دنیا له شروع څخه تر نن ورځې پورې څومره بېشماره انسانان پیدا شوي دي، مګر هېڅ یوه داسي جوړه انسانان نه پیدا کېږي، چې د هغوی شونډې، ژبې، لهجې، تلفظ، د تکلم طرز او نور خصایص سره یو شان وي. هم هغسې، چې د هر انسان شکل او صورت او رنګ او نور سره جلا "جدا" او ممتاز دي، غږ او شونډې او لهجه يې هم بېخي سره بېل دي، هېڅ یو داسي دوه انسانان نه پیدا کېږي، چې د دوی په غږ او رنګ، هیئت او وضعیت کې کومه بېلوونکې علامه او نښه نه وي. د عالم له ابتدا څخه تر نن ورځې پورې نوي نوي صورتونه، او د وینا او تکلم نوي نوي حالات لیدل کېږي او سره له هغه د الله تعالی خزانه هم هغسې ډکه پرته ده. په واقع کې دغه د الله تعالی له لوی قدرت څخه څومره یوه لویه نښه ده. فَتَذَكَّرُوْ يَا أُولِي الأَلْبَاب.

ددې آیت د حکم پر مخ په ژبو کې اختلاف د لوی خدای(ج) د قدرت د ځینو عجیبو خلقتونو په لړ کې یوه عجیبه د خلقت د نښې په توګه پېژندل شوی دی؛ نو ځکه ویلی شو، چې: که څوک د کوم ولس د ژبې سره دښمني کوي، هغه نه یوازې، چې د هغه ولس دښمن ګڼل کېږي؛ بلکې د لوی خدای(ج) د یوه ستر خلقت د نښې دښمن هم دی. دا په دا، چې ژبه لکه د اسمانونو، لکه د ځمکې او لکه د انسانانو د رنګونو په څېر د قدرت د لویو او مهمو خلقتونو د نښو په لړ کې یو ستر او مهم او له ارزښته ډکه د قدرت د عجایبو نښه ګڼله شوې او په رښتیا چې دغه د قدرت د عجایبو لویه نښه د انسانانو او د نورو ذي روحو حیواناتو تر منځ د توپیر او پېژندنې د ساتلو سره جوخت د انسانانو تر منځ هم د بېلابېلو څانګو او قبیلو د وېشلو سره یو ځای د وګړیو او ټولنو د ځان پېژندنې لامل او د مختلفو دودونو، رواجونو او فرهنګونو د رامنځته کولو مور هم ده.

له دې امله ده، چې پوهان وايي: "که چېرې ژبه ووژله شي، ولس مړی دی". دغه دلیل دی، چې د ژبې قاتل ته د ولس قاتل او د ولس قاتل ته د لوی خدای(ج) دښمن ویل کېږي. په دې ځای کې دی، چې باید ومنل شي، د ژبو سره د ښمني که د هر دین او آیین لا، چې په هر نامه هم وي د جنایت په څېر مردود او

محکوم دی. موږ تر او سه پورې په ړنو سترګو وینو او په اوربدونکیو غوږونو اورو ، چې زموږ پښتانه د پردیو په لمسه ژبې ته یوازې د افهام او تفهیم د ارزښت نه پرته بل څه درنښت نه دی ورکړی او لا په دې هم بسیا نه کوي او وایي ، چې په پښتو ژبه کې ؛ خو ډوډۍ نشته.

مګر له قرآن کریم نه پرته هېڅکله او هېڅ خبره کوم پښتانه عالم دا خبره ونه کړه ، چې ژبه لکه د اسمانونو ، لکه د ځمکې او لکه د انسانانو په رنګونو کې د اختلاف په څېر د لوی خدای(ج) د قدرت د پنځونې له مهمو نښو څخه ده او هېچا ته دا اجازه نشته ، چې ژبې ته په سپکه وګوري یا له هغې سره دښمني وکړي. لکه څنګه ، چې هېچا ته واک نشته له اسمانونو سره ، له ځمکې یا د انسانانو له رنګونو سره دښمني وکړي ، همدا رنګه دا هم د هېچا په واک کې نه ده ورکړل شوې څو د انسانانو د ژبو سره دښمني وکاندي ، که څوک د دښمنۍ په لیاره ځي هغه خو ارومرو د ابلیس په لیاره تللی دی ، چې ابلیس د انسان اصلي دښمن دی.

## ب : ځان پېژندنه:

د الحجرات سورآ په **13** آیت کې دا سې لولو:

*ترجمه:* اې خلکو موږ پیدا کړي یئ تاسې ټول اصلاً له یوه سړي ، چې "آدم" او له یوې ښځې ، چې "حوا " ده ، او ګرځولي یئ موږ تاسې څانګې څانګې او قبیلې قبیلې ، لپاره ددې ، چې وپېژنئ یو له بله سره ببشکه ، چې ډېر مکرم او معزز دی له تاسې څخه په نزد د الله(ج) ډېر متقي ادب لرونکی ستاسې. ببشکه ، چې الله(ج) ښه عالم ، ډېر خبردار دی.

*تفسیر:* زیاتره د غیبت ، طعن ، زم او عیب لټولو منشاء کبر او غرور دی ، چې آدمي خپل ځان لوی ګڼي او نورو ته په حقارت او سپکه ګوري ؛ نو ځکه الله تعالی دلته دا راښیي ، چې انسانانو سره نه ښایي ، چې په خپل اصل او نسب او لویي او عزت باندې مغرور شي. بلکې ودې پوهېږي ، چې د انسان اصلي لویي او عزت په دې کې دی ، چې ښه روش او ښه خصلتونه ولري ، او تل له الله تعالی وو پرېږي ، مؤدب او پرهېزګار وي. تر څو ددې ښو صفاتو په مېچ او اندازه د الله تعالی په دربار کې معزز او مکرم او محترم شي. د نسب حقیقت ؛ خو دا دی ، کې ګرد "ټول " نارینه او ښځې له "آدم " او "حوا " علیهم السلام څخه پیدا شوي دي. سیدي ، عثماني ، فاروقي ، صدیقي ، انصاري ، شیخي ، خاني ، زویتوب او نور صفتونه د ښه علم ، عمل او تقوی په مقابل کې هېڅ دي. او دا خاندانونه ، صفتونه او ستاینې پرته له دې څخه ، چې خلق پرې پېژندل کېږي او په تعارف کې کار کوي ، بل کوم قدر او قیمت نه لري. اصلي قدر او قیمت د هر سړي په دې کې دی ، چې متقي ، پرهېزګاره او پوه وي. بلا شبهه هر څوک ، چې الله تعالی په کومه شریفه ، لویه ، معززه او ښې کورنۍ کې پیدا کړی وي ، هغه خو یو مهذب شرف دی لکه ، چې ځینې کسان یې ښکلي "خوبصورت " جوړ کړي دي ؛ خو یوازې هم هغه ښکلیتوب د ناز او فخر وړ "لایق " نه دی ، او نه د کمال او فضیلت معیار ګڼه شي ، او نه د هغه له امله نورو ته په سپکه سترګه کتی شي.

هو ! شکر دې وکړي ، چې الله تعالی بلا اختیار او کسب موږ ته دا نعمت را مرحمت کړی دی.

دا هم په شکر کې داخل دي ، چې د غرور او تفاخر څخه ځان وژغوري ، او هغه نعمت دې په هغسې

رټلیو روشونو، بدو اخلاقو او خرابو خصلتونو سره خراب نه کړي. لنډه یې دا، چې د مجد، شرف، عزت او فضیلت اصلي معیار نسب نه؛ بلکې تقوی او طهارت دي. متقي سړی نورو ته هېڅکله په سپکه سترګه نه ګوري.

دا وه د قرآن له نظره د ځان پېژندنې په لیاره کې د انساني خلقت اصلي هدف. وګورئ د لوی خدای(ج) له لوري انسان په څانګو او قبیلو وېشلی شوی څو پر خپلو منځونو کې یو بل سره وپېژني او په دې توګه د لوی خدای(ج) په نزد د انسان لپاره لومړنی ضرورت پېژندنه او پېژندګلوي ده، چې په څانګو او قبیلو سره ممکنه شوې. او دا څانګې او قبیلې دي، چې انسانان په کې په خپل جلا هویت ژوند کوي، چې په اوسنۍ نړۍ کې په مختلفو هویتونو د مختلفو ملتونو او سېدل یو روښانه دلیل ګڼل کېږي؛ خو تقوی او پرهېزګاري د انسان لپاره په ټولنه کې دویم ضرورت دی، چې د هغه له امله نه یوازې د لوی خدای(ج) په نزد مکرم او معزز کېږي؛ بلکې په خپلو څانګو او قبیلو او لا هم د سیمې او نړۍ په کچه د اعزاز او شرف خاوند ګرځي. موږ نه شو کولای او لا، چې ددې اختیار هم نه لرو، چې د تقوی په نامه یا د تقوی د ضرورت له امله څانګې او قبیلې رنګې کړو، یا بالعکس د څانګو او قبیلو د پاللو په نامه تقوی او پرهېزګاري نفې کړو.

څانګې او قبیلې د انسانانو د هویت د پېژندنې بنسټ دی؛ خو تقوی او پرهېزګاري د وګړو د اعزاز او شرف وسیله ده. دا ځکه، چې د خلقت اصلي موخه د خالق او د مخلوق تر منځ معرفت او پېژندګلوي ده، او تقوی د اعزاز او شرف د لاس ته راوړلو په لیاره کې د عبادت لوړ مقام دی. له دې امله لوی خدای(ج) د انسان تقوی او پرهېزګارۍ ته څه ضرورت نه لري، مګر دا انسان دی، چې د شرف او عزت د خپلولو لپاره تقوی او پرهېزګارۍ ته محتاج دی. همدغه خبره ده، چې پوهان وایي: ځان وپېژنه، چې خپل خالق وپېژنې. دلته ده، چې انسان اړ کېږي څو لومړی ځان وپېژني او بیا خپله څانګه او قبیله وپېژني. د پېژندګلوۍ په لړۍ کې ده، چې انسان اړ دی د انساني نړۍ په ولسونو کې د یوې ځانته قبیلې یا څانګې غړی وي، او دا څانګې او قبیلې دي، چې ترې ملتونه او هېوادونه جوړ شوي دي، چې هره یوه یې بیا ځانته ځانته دیني، سیاسي، اقتصادي، ټولنیزې او فرهنګي موخې او ګټې لري. د خلقت په دې رنګه اختلاف کې دی، چې د خالق او مخلوق تر منځ د ازمېښت پروسه په بریې سره پر مخه درومي، او دغه ټولنیزه اړتیا ده، چې زه اړ یم ووایم په انساني ټولنه کې د ابراهیمي ملت وګړي، د اسلامي امت غړی او د افغاني "پښتني" ولس بچی یمه. که ددغې ځان پېژندنې سره جوخت زه د تقوی او پرهېزګارۍ خاوند هم واوسم؛ نو زما به اعزاز او شرف نه یوازې د لوی خدای(ج) په نزد؛ بلکې په افغاني ټولنه کې لا، چې په اسلامي امت کې ډېر زیات شي، او که نه؛ نو د خپل پښتني ولس یو ساده بچی به اوسمه، چې یمه.

د ځان پېژندنې او د لوی خدای(ج) پېژندنې لپاره په هر ځای او هر مهال کې د لوی خدای(ج) له لوري د لارښوونکو په وسیله لارښوونې شوې دي، چې زموږ دیني کتاب لوی قرآن او زموږ د اسلامي دین لارښود حضرت محمد(ص) هم د یو ستر لارښود په څېر منل شوی دی، او د هغوی له خوا د خالق او مخلوق تر منځ د امر او نهي له لیارې د پېژندګلوۍ او عبادت "لمانځنې" مزی په اصولي توګه ټینګ او مزبوت شوی دی. لکه، چې د ابراهیم سورۀ په 4 آیت کې داسې لولو:

*ترجمه:* او نه دی لېږلی موږ هېڅ رسول مګر خو په ژبه د قوم دده لپاره ددې، چې بیان کړي دوی ته

امر او نهې د الله(ج) ؛ نو ګمراه کوي الله(ج) هر هغه، چې اراده وفرمايي د ګمراهۍ يې او هدايت کوي هر هغه ته، چې اراده وفرمايي د هدايت يې. او هم دی ښه قوي، غالب دی په انفاذ د احکامو، ښه حکمت والا، چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي.

*تفسير:* يعنې همغسې، چې موږ تاسې ته د خلکو د هدايت لپاره دغه عظيم الشان کتاب عطا فرمايلی دی، پخوا له دې نه هم په هره زمانه کې د هدايت وسايل خلکو ته ورلېږلي او رسولي دي. کله، چې له طبيعي ترتيب سره موافق د هر نبي ړومبني مخاطبين د هغه قوم خلق وي، چې په دوی کې هغه نبي مبعوث ښېږي؛ نو ځکه د هغه قوم په ژبه وحې لېږله کېږي، څو د الله تعالی د احکامو په پوهولو کې پوره سهولت او اساني وي. د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په امت دعوت کې اګر که د جهان ګرد انسانان او پېريان شامل دي؛ خو بيا هم په هغه قوم کې، چې دوی مبعوث شوي دي، د هغوی ژبه عربي ده، او د طبيعي ترتيب په موافق د هدايت د شيوع همدغه يو صورت مقدر و، چې د دوی ړومبني مخاطبين او مقدم زده کوونکي په داسې سهولت او ښه والي سره په قرآني تعليماتو او حقايقو باندې وپوهېږي، چې ښه يې په ياد او محفوظ کړي، څو د دوی په ذريعه د عالم تمام اقوام او راتلونکي نسلونه درجه په درجه په قرآني رنګ سره رنګ کړی شي. لکه، چې همداسې هم وشول، عربو د خپل نبي په صحبت په قومي ژبې کې، چې له هغې سره دوی له حده زيات مينه او محبت درلوده پر قرآني علومو پوره علم او پوهه حاصله کړه، بيا دوی په مشرق او مغرب کې خپاره "خواره" شول او په روم او پارس کې د کلمآ الله د اعلا لپاره خپاره "خواره" شول. په دغه وخت کې د الله تعالی قدرت په عجمي اقوامو کې داسې زبردست جوش او د الله تعالی د کلام د معرفت داعيه او په عربي ژبه کې د پوهې او مهارت حاصلولو داسې شوق پيدا فرمايلی و، چې له لږې مودې څخه وروسته دوی د قرآني علومو په شرح او تبين کې له خپلو معاصرو عربو څخه ډېر پر مخ ولاړل؛ بلکې عموماً د دينيه وو او ادبيه وو علومو مدار تر ثريا پورې الوتونکو عجميانو ته پاتې شو او په دې ډول سره د الله تعالی حجت پر بندګانو په اتمام ورسګېده، او وقتاً فوقتاً له قرآني آياتونو څخه د مستفيد کېدلو اسباب به سره برابر کېدل. په هر حال د خاتم الانبياء عليه السلام د عربو په خاص قوم کې د مبعوث کېدلو که وجوه موجود دي او يقيناً شته؛ نو د همدغو وجوهاتو په نتيجه کې ددې سوال ځواب راځي، چې د قرآن کريم نزول په عربي ژبه سره ولې شوی دی؟ د لوی قرآن د نزول څخه په عربي ژبه کې د عربو رعايت ولې فرمايل شوی؟ نو ګمراه کوي له هر هغه، چې اراده وفرمايي د ګمراهۍ يې. او هدايت کوي هر هغه، چې اراده وفرمايي د هدايت يې. او همدغه الله تعالی ښه قوي او غالب دی په انفاذ د احکامو. ښه حکمت والا دی، چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي.

## ج: په توحيدي ملت کې د اسلام دين او اسلامي هدايت:

د الانبياء سورآ په **92** او **93** آيتونو کې داسې لولو:

*ترجمه:* په تحقيق سره دا ملت د توحيد ملت او د اسلام دين ستاسې ملت يو دی، چې په دغه دين متفق دي ټول انبياء او زه رب ستاسې يم. پس عبادت وکوئ زما خاص، نه د بل. او ټوټې ټوټې کړ دغو پخوانيو امتونو کار د دين خپل په منځونو خپلو کې، ټولې فرقې موږ ته راتلونکې دي؛ نو جزا به ورکړو دوی ته.

*تفسیر:* یعنې الله تعالی یو دی او ستاسې د دین اصول هم یو دي. ګرد انبیاء علیهم السلام هم د دین په اصولو کې داسې سره یو دي، چې هر هغه تعلیم، چې یو یې ورکوي، هغه بل هم د هغه تصدیق او تایید کوي. کوم اختلاف، چې په فروعو کې د زماني او مکان د اختلاف له امله منځته راځي، هغه عین مصلحت دی. مذموم اختلاف هغه دی، چې په اصولو کې وي؛ نو ځکه لازمه ده، چې ټول سره په ګډه د خدای(ج) بندګي وکړئ، او په کومو اصولو کې، چې ټول انبیاء سره متفق دي هغه ټول په یو طاقت ټینګ ونیسئ. موږ خو د اصولو په اعتبار ټولو ته یو دین ورکړی و؛ خو خلکو په کې په خپله اختلاف پیدا کړ او هغه دین یې سره ټوټې ټوټې کړ او په خپلو کې یې سره نفاق او شقاق پیدا کړ. یعنې کله، چې زموږ حضور ته راشئ؛ نو ټول اختلافونه به هلته سره فیصله شي، هر یو ته به د هغه د عملونو جزا ورکړی شي، چې تفصیل به یې په راتلونکي آیت کې راشي.

د العنکبوت سورآ په 146 آیت کې له کتابیانو سره د مباحثې او جګړې په هکله داسې لولو:

*ترجمه:* او جګړه مه کوئ تاسې اې مؤمنانو له کتابیانو سره، مګر په هغه خصلت سره، چې هغه ډېر ښه وي. مګر هغه کسان، چې ظلم یې وکړ له دوی څخه؛ نو ورسره په توري مجادله کوئ.

*تفسیر:* یعنې د مشرکانو دین له اساسه غلط دی. د کتابیانو دین اصلاً حق او رښتیا و؛ نو له کتابیانو سره د مشرکانو په شان جګړه مه کوئ، چې له بېخه د هغوی خبرې باطلې او پرې کړئ؛ بلکې په نرمې، متانت، خیر غوښتنې، صبر او تحمل سره په ضروري خبرو باندې دوی وپوهوئ. هو ! هغه کسان، چې د دوی له منځه ښکاره بې انصافي، ظلم، عناد او سرتمبه ګي کوي، له هغوی سره په مناسب صورت د سختۍ او تشدد معامله کولی شئ. او له دې نه وروسته دوی په سزا هم رسولی شي.

*تنبیه:* پخوا د قرآن کریم د تلاوت حکم و، په زیاترو وختونو کې به منکرینو د هغه د اورېدلو څخه په مباحثه او مناظره شروع کوله؛ نو دا یې راوښودله، چې د مباحثې په وخت کې د مقابلې ډلې د علمي او دیني حیثیت خیال ولرئ، او د مناظرې په ځوښ کې د اخلاقو او صداقت له حده مه وځئ. او هر چېرې، چې څومره صداقت وي پرې اعتراف کوئ.

## *د: د موسی علیه السلام دین او له بني اسرائیلو نه د یوه ملت جوړونه:*

ما په خپلې لومړنۍ لیکنې کې په دې ټکي اړخ لګولی و، چې: د موسی علیه السلام دین سل په سلو کې سوچه نیشنلیزم دی؛ خو زما ددې خبرې سره ښاغلي سرباز "صافي" مخالفت وښوده او په خپلې نیوکې کې یې ولیکل، چې دغه خبره افترا ده. نو موږ په دې هکله د قرآن شریف د النازعات سورآ په 17- 18 او 19 آیتونو کې راغلي احکام روښانه دلایل وګڼل.

ددې لپاره، چې ګران لوستونکي په پوره توګه پوهه تر لاسه کړای شي غوره ګڼم د النازعات سورآ د 17- 18 او 19 آیتونو د ترجمې او تفسیر پوره متن وړاندې کړم. دا هم د یادونې وړ ګڼم، چې ووایم د النازعات سورآ په مکه کې نازل شوی په تلاوت کې (79 یم) او په نزول کې (81 یم) سورآ دی؛ خو د ابراهیم سورآ، چې ما پرې اړخ لګولی دی هم مکي دی. یعنې پرته له 28 او 29 آیتونو، نور ټول په مکه کې نازل شوي، چې په تلاوت کې (14م) او په نزول کې (72 یم) سورآ دی. یعنې د ابراهیم سورآ په مکه کې د النازعات له سورآ نه مخکې نازل شوی، چې هم په نزول کې مخکې دی او هم په تلاوت کې. دا دی

د هغو دواړو پوره متن:

*1*- د النازعات سورآ 17-18 او 19 آیتونو ترجمه: لاړ شه "په رسالت زما "طرف د فرعون ته، چې بېشکه ده سر غړولی "تجاوز يې کړی دی "له احکام الله؛ نو ووايه ورته آيا مينه لرې ته په طرف ددې، چې پاک شې له شرک او معاصي نه، او "رغبت لرې دې ته، چې "لاره درونښيم تاته د رب ستا، پس وو بېرېږه ته "له عذابه".

*تفسير:* يعني که ته خپل ښه والی او اصلاح غواړې؛ نو زه د الله تعالی په امر ستا اصلاح کولی شم. او داسې لاره درښيم، چې پر هغې باندې له تللو څخه ستا په زړه کې د الله تعالی وېره او د هغه کامل معرفت ټينګ شي. ځکه، چې د وېرې شته والی بې له پوره معرفت څخه متصور نه دی.

ښکاره شوه، چې د حضرت موسی علیه السلام له بعثت څخه مقصد د فرعون اصلاح هم وه، او يوازې د بني اسرائيلو نجات او ژغورنه "ساتنه "له قيده نه وه. پس موسی علیه السلام فرعون ته ورغی او هغه ترې معجزه وغوښته.

*2*- د ابراهيم سورآ په پينځم آيت کې داسې لولو:

*ترجمه:* او خامخا په تحقيق لېږلی و موږ موسی علیه السلام په ښکاره وو معجزو زموږ، چې راوباسه قوم خپل له تيارو د جهالت او ضلالت څخه رڼا د علم او يقين ته او وريادکړه پند ورکړه دوی ته په هغو سختو ورځو، حوادثو او غورو نعمتونو د الله. بېشکه په دغو يادولو د سختيو او نعمتونو کې خامخا دلايل د قدرت دي لپاره د هر صبر کوونکي په زحمتونو ډېر شکر په نعمتونو.

*تفسير:* يعني د هغو معجزاتو له ورکولو سره موږ موسی علیه السلام لېږلی و، چې د تسعه وو آيتونو په نامه مشهور دي، يا به د تورات آيات مراد وي. او وريادکړه او پند ورکړه دوی ته په هغو سختو ورځو د الله(ج). يعني د هغو ورځو واقعات يې ور په ياد کړه کله، چې پر دوی باندې د شدايدو او مصايبو غرونه ولوېدل. بيا ؛ نو الله تعالی دوی ته له هغو څخه نجات ورکړ، او خپله مهرباني يې پرې وفرمايله ځکه، چې د دواړو قسمو حالاتو له اورېدلو څخه صابرو او شاکرو بندګانو ته عبرت حاصلېږي او د مصيبت په وخت کې وېرېدل او د راحت په وخت کې مغرورېدل نه دي په کار. هغه خلکو، چې پخوا له دې نه په بري او کاميابۍ رسېدلي دي، يوازې په دې وو، چې هغوی په سختيو صابران او د الله تعالی په نعمتونو باندې شاکران وو. لکه څنګه، چې د الاعراف سورآ په **137** آيت کې راغلي دي: او پوره شوه کليمه او وفا ته ورسېده وعده د رب ستا، چې نېکه ده دا احسان پر بني اسرائيلو په سبب د صبر کولو د دوی پر ظلمونو د فرعونيانو او خرابې کړې موږ هغه کلکې ودانۍ، چې ودانولې به فرعون او قوم دده او هغه پخې پخې ودانۍ، چې لوړولې به دوی هغه.

د ابراهيم سورآ په شپږم آيت کې بيا هم هغه مصايبو او شدايدو ته اشاره شوې، چې د فرعونيانو له لوري به پر بني اسرائيلو عملې کېدل. لکه: مريي توب، بېګار او د زامنو وژل او نور.

په دې توګه موسی علیه السلام د لوی خدای(ج) له لوري خامخا او په تحقيق سره خپل قوم ته يعنې بني اسرائيلو ته استول شوي و، چې څو خپل قوم له تيارو د جهالت او ضلالت نه د علم او يقين رڼا ته راوباسي، او د آزادۍ او خپلواکۍ په خوندونو يې ماړه کړي.

موسی علیه السلام د لوی خدای(ج) د امر اطاعت وکړ د خپل ورور هارون علیه السلام سره د

فرعون پـه لـوري ورغـی، چې د النازعـات سـورآ د 17- 18 او 19 آيتونـو پـر مـخ فرعـون د موسـی عليـه السلام بلنه ونه منله؛ خو د ډېرو معجزو له ليدلو نه وروسـته يې موافقـه وکړه څو موسـی عليـه الـسلام خپل قوم له مصر څخه وباسي. کله، چې موسی عليه السلام خپل قوم د سـينا سـيمې تـه راورسـاوه دلتـه و، چې د موسی عليه السلام د غيابت پـه مهـال کې ځينې بني اسرائيل بت پرست شـول؛ نو کلـه، چې موسی عليه السلام راغی او ويې ليدل، چې ځينې د خوسي د بت لمانځنه کوي او د لـوی خدای(ج) لـه لمانځنې نه اوښتي دي. له دې امله ډېر زيـات پـه قهـر او غـصه شـو. ښـه بـه وي، چې پـه دې هکلـه قرآنـي آياتونو ته مراجعه وکړو:

د البقرآ سورآ په 54 آيت کې داسې لولو:

*ترجمه:* او ياد کړئ هغـه وخـت، چې وويـل موسـی عليـه الـسلام خپـل قـوم تـه اې قومـه زمـا ! بېـشکه تاسې، چې يئ ظلم کړی دی تاسې پر خپلو ځانونو په سبب د نيولو د تاسې خوسي لـره پـه خدايي سره، پس توبه وباسئ ټول خالق د تاسې ته، نو ووژنئ ځانونه خپل. دغه ځان وژل ستاسې بهتر دي تاسې ته په نزد د خالق د تاسې. پس قبوله يې کړه توبه ستاسې. بېشکه الله(ج) هم دی ښه توبه قبلوونکی ښه مهربان دی په توبه کوونکو.

*تفسير:* له قوم نه خاص همغه خلق مراد دي، چې هغوی خوسي تـه سـجدې کـولې. يعنـې هغـه کسان، چې خوسي ته يې سجده نه ده ايښې. هغوی دې هغه کسان ووژني، چې خوسی يې خدای ګڼلی او سـجده يې ورته کړې وه. ځينې وايي، چې بني اسرائيل په درې برخو وېشلي شوي وو:

1- هغه ډله، چې يې خوسي ته سجده ونه کړه او هم يې نـورو تـه وويـل، چې خوسـي تـه سـجده مـه کوئ.

2- هغه ډله چې په خپله دوی خوسي ته سجده ونه کړه، مګر نور يې د خوسي له سـجدې نـه منـع نـه کړل.

3- هغه ډله، چې په خپله دوی خوسي ته سجده وکړه.

په درېيمه ډله امر وشو، چې ټول دې ووژل شي. عـالمـان پـه دې خبره کې سره اختلاف لـري، چې آيـا همدا وژل کېدل توبه وه؟ او که د توبې تتمه وه؟.

دا وه د آيت ترجمه او تفسير. له دې پېښې نه وروسته کله، چې موسی عليـه الـسلام خپـل قـوم سـره د شام ملک ته نژدې کېږي خپل قوم ته د وطن او په وطن کې د آزاد ژوند لپـاره د جهـاد امـر کـوي، چې پـه قرآن کريم کې داسې لولو:

د المائدآ سورآ 20 آيت:

*ترجمه:* او ياد کړه اې محمده(ص) هغه وخت، چې وويـل موسـی(ع) خپـل قـوم تـه اې قومـه زمـا ! يـاد کړئ تاسې نعمت "احسان" د الله(ج) پر تاسې باندې کله، چې يې وګرځول پـه تاسـې کې ډېر انبيـاء او وګرځول "الله" په تاسې کې "يا له تاسې نه" باچايان او درېي کړ تاسې تـه هغـه، چې نـه يـې و، ورکـړی هېڅ يوه ته له خلکو د زمانې ستاسې.

*تفسير:* پـه "موضع القرآن" کې دي، چې حضرت ابراهيم عليـه الـسلام د خپـل پـلار وطـن "عـراق"

پرېښود او د الله تعالی په لاره د شام ملک ته لاړ او هلته يې هستوګنه غوره کړه او تر يوې مودې پورې يې اولاد ونه شو. دلته الله تعالی پرې زېرې وکړ، چې زه ستا اولاد خپروم او د "شام" ځمکې به هغوی ته ورکوم او نبوت، دين، کتاب او سلطنت به د دوی په منځ کې ږدم. بيا يې د حضرت موسی عليه السلام په وخت کې هغه وعده پوره کړه او بني اسرائيل يې د فرعون له بېګاره وژغورل او قبطيان يې ډوب کړل، سبطيانو ته يې وفرمايل، چې له "عمالقه وو" سره جهاد وکړئ، او د شام ملک ځانته فتح کړئ. بيا د تل لپاره د "شام" ملک ستاسې دی. حضرت موسی عليه السلام هغه دولس تنه سړي، چې د بني اسرائيلو په دولسو قبيلو باندې سرداران مقرر کړي وو "شام" ته ولېږل، چې د هغه ملک حال احوال راوړي. کوم خبرونه، چې دوی د خپلو مطالعاتو په اثر راوړل له هغو ځنې دا څرګنده شوه، چې د "شام" په ملک کې خورا ډېر محاسن او ښېګڼې (فايدې) شته او د هغو "عمالقه وو" زور او قوت يې بيان کړ، چې دوی پر شاماتو او شاميانو مسلط او حاکمان وو. حضرت موسی عليه السلام دوی ته وويل، چې تاسې خپل قوم ته د "شام" محاسن بيان کړئ، مګر د دښمن د قوت ذکر مه کوئ. له دوی ځنې يوازې دوو تنو پر دغه حکم عمل وکړ او لسو تنو نورو يې ترې مخالفت وکړ. کله، چې نورو بني اسرائيلو دا خبرې واورېدې؛ نو بې زړه شول، او ويې غوښته، چې بېرته ستانه شي، پس مصر ته راشي. ددې تقصير له امله تر څلوېښتو کلونو پورې د شاماتو په فتح کېدو کې ځنډ او تعطيل پېښ شو. په دې موده کې دوی په ميدانونو کې سر بداله ګرځېدل. کله، چې د هغه قرن او زماني سړي مړه شول؛ نو د همغو دوو سړيو په لاس هغه فتح پوره شوه، چې موسی عليه السلام څخه وروسته دده خليفه ګان شوي وو.

"اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْبِيَاءَ" کله، چې وګرځول الله تعالی په تاسې کې ډېر انبياء يعنې ستاسې د اعلی جد حضرت ابراهيم عليه السلام له زماني راهيسې تر نن ورځې پورې څومره ډېر انبياء عليهم السلام ستاسې په منځ کې پيدا شوي دي، مثلاً حضرت اسماعيل، حضرت اسحاق، حضرت يعقوب، حضرت يوسف عليهم السلام او په خپله موسی عليه السلام او هارون عليه السلام او وروسته له دوی نه هم دا سلسله تر يوې اوږدې زمانې پورې قايمه پاتې وه، چې تاسې ته به دوی ارشادات کول او پرې مشرف او معزز کېدلئ به.

"وَجَعَلَكُمْ مُلُوكاً" او وګرځول الله تعالی په تاسې کې يا له تاسې نه باچايان. يعنې د "فرعون" له خورا ډېر ذلت، سپک توب او غلامۍ څخه يې آزادي درکړه، او د فرعونيانو په اموالو او املاکو مو مسلط وګرځولئ. او له دې نه وړاندې ستاسې له منځه مو حضرت يوسف عليه السلام ته څرنګه د مصر په خزاينو او سلطنت تسلط عطا فرمايلی و؟ بيا وروسته مو حضرت سليمان عليه السلام او نور انبياء عليهم السلام او باچايان پيدا کړل. ګواکې د دين او دنيا له دواړو لويو نعمتونو سره مو تاسې ته سر لوړی درکړه. ځکه، چې په ديني مناصبو کې خورا ډېر لوی منصب "نبوت" او په دنيا کې اخري اقبال آزادي او باچاهي ده، چې دا دواړه شيان الله جل جلاله تاسې ته اې بني اسرائيلو در عطا فرمايلي دي.

"وَآتَاكُمْ مَا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِينَ" او در يې کړ تاسې ته اې بني اسرائيلو هغه شيان، چې نه يې و ورکړي هېڅ يوه له خلکو د زمانې ستاسې ته. يعنې موسی عليه السلام ته يې دا خطاب وفرمايه، چې پر بني اسرائيلو باندې د دنيا له ګردو خلکو څخه د الله تعالی زيات مهرباني او لورېينه شوې ده لکه: من، سلوی، د وريځې سيوری، بهول د اوبو له تيږو "ګټو" او د بحر څېرول.

د المائدآ سورآ په 21 آيت کې داسې لولو:

ترجمه: اې قومه زما ننوځئ ځمکې پاکې کړی شوې "بيت المقدس يا د شام يا د ايليا يا د اريحا" ته هغه ځمکه، چې مقرره کړې ده الله تعالی تاسې ته په لوح محفوظ کې "په شرط د ايمان ستاسې" او بېرته مه ځئ په شا و خپلو "له جهاده" نو وبه ګرځئ تاسې زيان کاران "په سعې خپلې".

تفسير: يعنې الله تعالی پخوا له دېنه له حضرت ابراهيم عليه السلام سره وعده فرمايلې وه، چې ستا اولادې ته به دا ملک ورکوم، او هغه وعده هرومرو "خامخا" پوره کېدونکې ده، هغه خلق به نېکمرغه او بختور وي، چې په لاسونو او وسيله دغه پوره شي؛ نو "ننوځئ" دې پاکې ځمکې ته او شا مه ګرځوئ له جهاده که نه سخت نقصان به وګالئ "برداشت کړئ" يعنې په جهاد في سبيل الله کې بې زړه توب، وېره او بې همتې مه کوئ، او د مريې توب "غلامۍ" د ژوندون په لارې منډې مه وهئ.

د المائدآ سورآ 22 آيت:

ترجمه: وويل دغو "بني اسرائيلو" اې موسی! بېشکه په دې ځمکه کې يو قوم دی ډېر زورور "چې موږ يې د مقابلې طاقت نه لرو" يعنې ډېر قوي هيکل، مېړني، پياوړي او له رعبه ډک او وېرونکي دي او بېشکه موږ له سره نه ننوځو په دغې ځمکې کې تر هغو پورې، چې ووځي دوی له دې ځمکې نه؛ نو که ووځي دوی له دې ځايه "بې له جنګه"؛ نو بېشکه موږ ننوتونکي يو.

تفسير: يعنې د مقابلې همت په موږ کې نشته. هو! بې د لاسونو او پښو د خوځولو څخه پخه او تياره خورو. تاسې د خپلې معجزې په زور دوی وباسئ.

د المائدآ سورآ 24 آيت:

ترجمه: وويل دغو "بني اسرائيلو" اې موسی! بېشکه، چې موږ له سره نه ننوځو دې ښار ته هېڅکله ځو، چې وي دغه "عمالقه" په کې، پس ځه ته او "ځي دې" رب ستا "يا ته او مشر ورور او مربي ستا چې هارون دی"؛ نو جنګ وکړئ دواړه بېشکه موږ دلته ناست يو له جنګه "په انتظار د برې ستا".

د المائده سورآ 25 آيت:

ترجمه: وويل "موسی" اې ربه زما! بې شکه زه مالک نه يم "اختيار نه لرم" مګر د ځان خپل او د ورور خپل، چې هارون دی؛ نو بېلتون "جدايي" وکړه په منځ زموږ او په منځ د قوم د فاسقانو کې، چې د فرمان له وېرې نه وتلي دي.

د المائدآ سورآ 26 آيت:

ترجمه: نو وفرمايل "الله تعالی" پس بېشکه دغه "مقدسه ځمکه" حرامه کړی شوې دې پر دوی باندې "ننوتل هغې ته" څلوېښت کاله، چې حيران، سرګردان به ګرځي دوی په هم دې ځمکه کې نو مه خپه او متاسف کېږه پر قوم فاسقانو "وتونکي له فرمانه".

په دې توګه د قرآني آياتونو د صراحت په مخ له څلوېښتو کلونو نه وروسته د شام ملک د بني اسرائيلو له خوا فتح شو او بني اسرائيلو وکولای شول د لومړي ځل لپاره د ځمکې پر مخ خپل ملت او دولت جوړ کړي. څرنګه، چې ګرانو لوستونکيو د پورتنيو آياتونو په ترجمو او تفاسيرو کې ولوستل. موسی عليه السلام ته د خپل قوم د ژغورنې په اړخ کې د لوی خدای(ج) له لوري دا وظيفه هم سپارل شوې وه، چې فرعون ته د ربتينې لياري بلنه ورکړي. يعنې لومړنی هدف د بني اسرائيلو ژغورنه وه،

چې هغوی ډېره اوږده موده پر مصائبو او مشکلاتو صبر کړی و. او بل دا، چې ابراهیم علیه السلام ته د لوی خدای(ج) له لوري دا وعده هم شوې وه، چې د هغه اولادې ته به د شام ملک ورکوي، او د هغه حنیف ملت ته به د ځمکې پر مخ وده او پراختیا ببښي، چې د موسی علیه السلام دغه د بني اسرائیلو د ژغورنې او خپلواکۍ ته د رسولو کار په دې لیاره کې د ابراهیمي ملت جوړونې لومړنی بنسټیز پوخ ګام ګڼل کېدای شي.

او همدا رنګه په پورته تفاسیرو کې مو ولوستل، چې موسی علیه السلام د هغو بني اسرائیلو د وژلو امر هم کړی دی کومو، چې د خوسي بت ته سجدې کړې وې. په دې توګه چا، چې خوسي ته سجده کړې هغه د موسی علیه السلام په امر وژل شوی دی؛ نو له دې امله د ښاغلي سرباز "صافي" خبره، چې وايي موسی علیه السلام؛ خو د پیغمبرۍ په مهال کې څوک نه دي وژلي، مګر وژلي یې دي، چې په دې لیکنې کې ولوستل شول.

د ښاغلي سرباز "صافي" د پورتنیو دوو موادو د نیوکو په هکله ښايي همدغه لنډه لیکنه، چې په پورته توګه وشوه بسنه وکړي او ښاغلي لوستونکي به هم په دې ټکي پوه شوي وي، چې د لوی خدای(ج) اراده وه، چې ابراهیم علیه السلام ته په زړښت کې زوی وبخښي او بیا د هغه په کورنۍ کې دومره لمسیان او کړوسیان راوپنځوي، چې په سیاسي اړخ کې ځانته یو ملت شي او د عقیدې له پلوه دده او لاده بیا ځانته یو امت شي. دغه؛ خو هم هغه خبره ده، چې هېڅوک ترې سترګې نه شي پټولی او ترېنه نه شي منکرېدلی. یعنې "دین" د معنی له مخې هم عقیده او هم ملت دی، او دغه دواړه توکي د موسی علیه السلام په مټو په بني اسرائیلو کې تحقق وموند. په دې مانا، چې هم یې دین او هم یې دنیا ودانه کړله. یو خوا یې بني اسرائیلو ته پلرنۍ ګروهه، چې د یوه خدای(ج) لمانځنه ده وښودله او په بله خوا کې یې هغوی ته د آزادۍ د ښښلو سره جوخت د شام د ملک د نیولو امر هم ورکړ او هغوی یې وهڅول، چې د آزاد ژوند د لرلو لپاره باید د شام ملک د جګړې له لیارې ترلاسه کړي. آزاد ژوند یعنې څه؟ یعنې خپل وطن لرل او په خپل وطن کې د خپل واک خاوندان کېدل، چې نیشنلیزم هم همدا دوه توکي غواړي نه نور بل څه. بدمرغي په دې کې ده، چې که موږ وو ایو ملت پالنه، ملت جوړونه، ملت روزنه او ملت ویښونه؛ نو ګناهګار ېږو او باید توبې وباسو. او که چېرې وو ایو، چې "ناسیونالیزم یا نیشنلیزم" دا، چې دغه دواړه کلیمې یا غونډلې له اروپا نه راغلې دي پرې کافر کېږو. یعنې د تکفیر حکم ته باید غاړه کېږدو.

نه پوهېږم، چې دا ولې؟ د یونان د فلاسفه وو ټول علم د اسلامي واکمنانو په امر وژباړل شو او په اسلامي نړۍ کې خور شه؛ خو څوک پرې کافر نه شول. له لویدیځې نړۍ نه موټرې، رېلونه، الوتکې او نور رنګ په رنګ تخنیکي سامان الات را وارد شول؛ خو څوک پرې کافر نه شول. تر دې اخوا لا د اسلامي نړۍ د واکمنانو په شمول د ډېرو متنفذو افرادو او ګروپونو په جېبونو کې د لویدیځې نړۍ ډالرې او پونډونه ګرځول کېږي او لګیا دي د هغو په زور په اسلامي نړۍ کې سیاست او حکومت کوي؛ خو یو یې هم کافر نه شو. مګر که چېرې وویل شي، چې نیشنلیزم ملت پالنه ده، ملت جوړونه ده او دا د دین په بنسټ پورې هم ځان نښلوي. بیا نو د تکفیر غږونه را پورته شي هغه هم یوازې په افغاني ټولنه کې د پښتنو لپاره.

که محمد علي "جناح" د انګرېزانو په زور د خپلو اردو ژبیو د واکمنۍ لپاره پاکستان جوړوي نه

کافر کېږي. که عبد العزیز "ابن سعود "د انګرېزانو په زور د سعودي د کورنۍ د واکمنۍ لپاره د حجاز ټاپو وزمه د "سعودي" په نامه اړوي او سلطنت جوړوي نه کافر کېږي. که "مصطفی کمال" د انګرېزانو په زور نوي مودرنه ترکیه جوړوي نه کافر کېږي. که روح الله "موسوي خمیني" د اسلام په نوم د شیعه ګانو ایران جوړوي، یعنې د اسلام رسۍ د تشیع په موږي کلکه تړي او په دې توګه په افغانستان، لبنان، پاکستان، عراق او نورو اسلامي هېوادونو کې مېشته وو شیعه ګانو ته پیسې او وسلې ورکوي، چې سني مسلمانان ووژني نه کافر کېږي. که په افغانستان کې د دعای قنوت د نه زده لرلو په ګناه مسلمان ځوانان وژني نه کافر کېږي. که په افغانستان کې یو رېږه ور مسلمان بل رېږه ور مسلمان د دښمنانو په لمسه او پیسو وژني او خپل دا عمل لا هم روا ګڼي نه کافر کېږي. که مسلمان، مسلمانان وژني او خپلې واکمنۍ باندې د اسلامي دولت نوم ږدي نه کافر کېږي؛ نو زه به هم د رېږې خرېيلو په تور هم هېڅکله کافر نه شم، او دا به هم زما په ګناهونو کې شمېر نه شي، چې ما ویلي دي: "هر دین په خپل بنسټ کې نیشنلیزم دی" ځکه، چې دین په خپله اصلي لغوي مانا کې عقیدې او ملت ته وايي، هغه عقیده او ملت، چې د موسی علیه السلام د مبارزې اصلي زړی و.

## *هـ: ادیان د قرآن له نظره:*

د الحج سورۀ په 67- 68 او 69 آیتونو کې د ادیانو د بنسټ په هکله او دا، چې هر امت ته جلا شریعت ورکړ شوی دا سې لولو:

*ترجمه:* لپاره د هر یوه ملت مقرره کړې ده موږ یوه لاره د بندګۍ، چې ددې عمل کوونکي وي، د هغه نه پس نه ښایي جګړه وکړي، دا خاوندان د ادیانو خامخا تا سره په دې کار "دین" کې ځکه، چې محمدي دین حق او ظاهر دی او بلنه کوه د خلکو توحید او عبادت د رب خپل ته، بېشکه ته یې خامخا په هغه سمه صافه لیاره، چې برابره تللې ده حق ته. او که جګړه کوي په امر د دین کې کفار له تا سره؛ نو وو ایه اې محمده(ص) دوی ته، چې الله(ج) ښه پوه دی په هغه جګړه او عناد، چې کوئ یې تاسې. الله(ج) به حکم وکړي په منځ ستاسې کې په ورځ د قیامت په هغه شي کې، چې وئ تاسې، چې په هغه کې مو اختلاف کاوه، چې د دین امر دی.

*تفسیر:* ټول انبیاء د دین په اصولو کې سره متفق دي. د هر امت لپاره الله تعالی د عبادت مختلف صورتونه په مختلفو زمانو کې ټاکلي دي، چې د هغوی سره سم، هغو امتونو د الله تعالی عبادت کاوه. لکه دې محمدي امت ته هم یو خاص شریعت لېږل شوی دی. لېکن د دین اصل تل تر تله یو شی و او دی. او پرته له الله تعالی څخه د بل هېچا او هېڅ شي لپاره عبادت نه دی مقرر شوی؛ نو ځکه په توحید او نورو متفق علیه دیني مسایلو کې هېچا ته نه ددې لایق او نه د هغه له حاله سره مناسبت لري، چې څه اختلاف او څه جګړه وکړي. کله، چې کافران په داسې واضح او ښکاره شیانو کې هم دعوی او جګړې وکړي؛ نو تاسې د هغوی هېڅ پروا مه کوئ. تاسې په هم هغسې سمې صافې لارې باندې روان شئ، او نور خلق هم هغې ته راوبولئ، او د معاندینو د جګړې فیصله الله تعالی ته وسپارئ، چې هغه د دوی په ګردو "ټولو " حرکاتو ښه پوه او خبر دی. د قیامت په ورځ به د دوی ددغو ټولو اختلافونو او جګړو عملي فیصله وکړي. ته د دعوت او تبلیغ فرض ادا کړه او د دوی په فکر کې ډېر سر مه خوږوه، د داسې معاندینو علاج یوازې پاک الله(ج) سره دی.

*تنبیه:* د (فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْأَمْرِ) مطلب دا هم کېدای شي کله، چې د هر امت لپاره الله تعالی بېل دستور العمل مقرر کړی دی، چې په هغه سلسله کې د غه محمدي امت ته هم شریعت راغلی دی؛ نو بیا د جګړې سبب څه شی دی؟

"وَهَذَا قَبْلَ الْأَمْرُ بِالْقِتَالِ" ځینو مفسرینو د "منسک" معنی په ذبح او قربانۍ سره کړې ده. مګر اقرب هم هغه ده، چې مترجم اختیار کړې ده، والله اعلم.

ددې آیت د حکم او روښانتیا له مخې کولی شو ووایو، چې د ابراهیمي ملت لپاره، چې همدا اوس په دربو امتونو کې وېشلی ژوند کوي درې ادیانه یا درې شریعته ورکړل شوي دي؛ خو ددې وارو بنسټ یو دی، چې په توحیدي عبادت کې تنظیمېږي. کله، چې خبره په هر یوه ملت څرخي؛ نو بیا موضوع د ابراهیمي ملت نه بره نورو ملتونو ته هم رسېږي. دا، چې دا نور ملتونه څه نومېږي او چېرته او په کومې زماني او مکاني حالاتو کې اوسېدل او د هغوی د شریعت نومونه څه دي؟ په قرآن کې د المؤمن سورآ د 78 آیت نه پرته نور څه په روښانه توګه ما نه دي لیدلي. د المؤمن سورآ په 78 آیت کې؛ خو یوازې دومره حضرت محمد(ص) ته ویل شوي دي، چې له تانه پخوا 124 زره انبیاء او رسولان استول شوي، چې د 29 تنو پیغمبرانو نومونه او قصې په قرآن کریم کې راغلې او د نورو په هکله توضیحات نه شته او دا هم نه ده څرګنده، چې د ابراهیمي ملت خښته؛ خو د سامي په نژاد کې ایښودل شوې آیا په هماغه مهال کې د انساني ټولنې په نورو نژادونو کې هم کوم ملت، چې د مستقل شریعت خاوند و موجودیت لاره او که نه؟ په هر حال د ځینو عالمانو او پوهانو په قول همدا اوس، چې د ابراهیمي ملت نه پرته نور کوم ادیان شته دي او د هغوی تاریخ د اسلام له دین نه لا پخوا زمانو ته رسېږي ښایي په هماغو ملتونو کې وشمېرل شي، چې په قرآن کریم کې ورته اشاره شوې ده.

## و: د اسلام دین که عربي فرهنګ:

ما د خپل لیک په یوه برخه کې د اوس مهاله اسلامي هېوادونو پر عملي سیستم نیوکه کړې او ویلي مې وو، چې هغه رښتیني اسلامي دین، چې په مکه او مدینه کې را نازل شوی و، په مدینه کې خاورو ته سپارل شوی دی او موږ ته، چې څه راغلي یا راځي دا د عربو فرهنګي یلغار نه پرته بل څه نه دي، چې ددغې خبرې په مقابل کې ښاغلی زلمی "مومند" ډېر زیات پارېدلی او ډېر زیات زورېدلی دی، چې ګنې خدای(ج) مه کړه ما به کفر ویلی وي، یا به زه کافر شوی اوسم. نه داسې نه ده شکر الحمد لله لا هم مسلمان یم او مؤمن مسلمان یم، یعنې یوازې لوی خدای(ج) ته مؤمن او مسلمان یم نه بل چاته. له دې امله په هر لمانځه لا په هر مهال کې لوی خدای(ج) نه پناه غوارم، چې د رټل شوي شیطان له وسوسو مې وژغوري. په دې هکله، چې څه ما لیکلي و او ښاغلي زلمي "مومند" له هغه نه څه انګېرلي دي؟ او بیا زما د دریغ دلیل او برهان څه دی؟ یو دربیم ګړی کس غواړي، چې قضاوت وکړي، چې په دې لیاره کې پوره پوهه ولري او د سیاست له اړخه هم پوره ناپېیلی وي. که نه؛ نو تاریخ روښانه کړي، چې په عملي سیستم کې د پیغمبر لیاره د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله تعالی عنه او د حضرت عمر فاروق رضي الله تعالی عنه له خوا په پوره امانت په پرله پسې توګه تعقیب شوه؛ خو د حضرت عثمان رضي الله تعالی عنه د کار له پیل نه تر نزاع لاندې راغله څو، چې هغه حضرت شهید کړل شو. په همدې توګه د

حضرت علي کرم الله وجهه د کار له پیل نه هم همغه د څوکۍ لېونیانو د جګړې لپاره غوره کړله، چې په سلګونه سوچه مسلمانان لا ، چې د حضرت پیغمبر اصحاب هم په کې ووژل شول؛ نو چې کله حضرت معاویه د واک په ګدۍ کښېناست له دې نېټې نه دې وروسته ټباغلی زلمی "مومند " وایي، چې څه وشول؟ آیا د عربو فرهنګي یلغار پیل شو او کنه، که وایي، چې نه؛ نو بیا د امویانو او عباسیانو کړکېښې یا تاریخ ته دې مراجعه وکړي او ودې ګوري، چې دغو دوو په نامه اسلامي خلافتونو یوازې او یوازې د زلمي "مومند "له سیمې نه یې په کال کې څومره نجونې د وینځو په څېر او څومره هلکان یې د مریانو په نامه خپلو دربارونو ته وړې دي؟ په اسلام کې خو مریي توب له بېخه او بنسټه محکوم شوی او لغوه شوی و هغوی، چې د اسلام د خلافت دربار ته بې ګناه انسانان د وینځو او مریانو په نامه غوښتل او په دربار کې به یې له هغوی نه ناوړه، غیر اسلامي او غیر اخلاقي استفاده کوله او په دې توګه به یې د اسلامي احکامو په خلاف په انساني ټولنه کې د مریي توب ناوړه سنت ته وده ورکوله لکه، چې د زلمي "مومند " د بصیرت له سترګو نه بهر پاتې دي او هېڅ یې نه ویني.

پیغمبر حضرت محمد(ص) ، چې د اسلام د دین د عملي سیستم باني هم دی، په عملي سیستم کې د واکمنۍ لپاره یې د ځای نیونې په هکله له پوهې، تقوی او پرهېزګارۍ له خاوندانو نه پرته بل څوک نه دی وړ ګڼلی، چې له همدې امله وه چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله تعالی عنه یې په خلافت کې وټاکل شو ؛ خو چې کله معاویه واکمني تر لاسه کړله؛ نو اسلامي خلافت یې یوازې خپلې کورنۍ ته محدود او محصور کړ، او په دې توګه یې د عربو لپاره د اسلام په نامه او د اسلام تر بیرغ لاندې د عربو امپراتوري جوړه کړله.

لکه څنګه، چې د عملي سیستم د بحث په پخوانیو کرښو کې مو ولوستل او دا دی دلته یې هم لولو د معاویه د واکمنۍ د زمانې نه را په دېخوا د اسلام دین په دوو جلا پړاوونو کې پر مخ تللی دی، چې یو یې نظري پړاو او بل یې عملي پړاو دی. نظري پړاو لکه څرنګه، چې ښایي د دیني علماوو او پوهانو له خوا سره د ټولو اختلافونو ، چې د مذاهبو له لیارې رامنځته شوي په ښه توګه او په اصولي بڼه وروستني نسلونو ته رارسېدلي؛ خو عملي پړاو یې بیا د خواشینیو او غمونو نه ډک تاریخ لري. وګورئ پیغمبر(ص) او د هغوی راشدین خلفاء په دنیا کې فقیرانه ژوند لرلو او له دنیا نه یې هم په تشو او خالي لاسونو رحلت کړی دی؛ خو د هغوی نه وروسته نور؛ نو اسلامي واکمنانو د فرعوني دبدبې او قاروني شتمنیو سره یو ځای له دې دنیا نه تللی دي.

تېر په هېره همدا اوس او په همدا اوسني افغانستان کې به وګورو. هغوی، چې ځانونه د اسلام د دین وارثان ګڼي کله یې هم په خپلو لاسونو کار کړی دی؟ او کله یې هم چېرته خپل لاسونه تناکې کړي دي؟ چې هر یو یې میلیاردر دی. او هر یو یې هم د اسلام په نامه د ولس د واک مدعي دی؟ د شیعه ګانو کار؛ خو لا بل منګه دی. دغه واکمنه عملي سیستم ددې سبب شوی دی، چې د اسلام د دین د اصولو د غوښتلو په لیاره کې هره هڅه نیمګړې او نیمه خوا پاتې شي. موږ د ایران د اسلامي انقلاب په پلوۍ چیغې ووهلې؛ خو هغه انقلاب د شیعه مذهب په تنګه سیمه کې د خمیني له خوا په یوه نه خوځېدونکي موړې "مېخ " کلک وتړل شو.

موږ په افغانستان کې د اسلامي انقلاب د جهاد په پلوۍ هر څه وښندل؛ خو په نتیجه کې څو تنه میلیاردره لېډران او پاټک لرونکي قوماندانان مو وګټل، چې هر یو یې د واکمنۍ پر سر د بل د سر

پربکولو ته شیبې شماري. هسې میلیاردران، چې د جهاد د زمانې نه مخکې د افغانستان په اسمان کې یې ستوری نه لاره او په ځکه کې یې سیوری. مګر اوس هر یو یې د جهاد له برکته شخصي ټوپکیان لري، پاټکونه یې جوړ کړي، لیارې شوکوي او جنایتونه کوي؛ خو موږ افغانان لا اوس هم ناست یو له ځانو کټوري غواړو. زلمی "مومند" چې یقین دی لکه زما په څېر به لا هم له افغانستان نه بهر اوسي او افغانستان ته د تللو لیارې به هم پرې بندې وي؛ خو د خپلو دغسې د پردیو له خوا جوړو شویو میلیاردره اسلامي لیډرانو نه په اسلامي نړۍ کې اسلامي خلافت غواړي؛ نو پوښتنه داده، چې څرنګه خلافت؟ آیاد خلفای راشدینو په څېر؟ که د معاویه له خوا، چې کوم خلافت رامنځته شوی و؟ که چېرې وو ایي، چې د خلفای راشدینو په څېر خلافت غواړي؛ نو دا هم باید ومني، چې د داسې اسلامي میلیاردره لیډرانو په لاسونو هم هېڅکله هسې اسلامي خلافت نه شي جوړېدلی او دا هم همغه خبره ده، چې وایي: ته چې له لال خان نه اوبه غواړې، تږی نه یې.

تر دې لا بر بنده جفا په فرهنګي اړخ کې ده، چې د دغو میلیاردرو له خوا لکه د مثال په توګه د ښاغلي عبدالرب رسول سیاف په مستقیم امر او هدایت عملي شوې ده. وګورئ د نوموړي د تنظیم چاپي خپرونو ته، چې د جهاد په دوران کې په پېښور کې یې لرلې. هغو به په ډېره ناروا او غیر دیني توګه د پښتون پښتني نومونه غیر اسلامي ګڼل او پر هغوی به یې عربي نومونه اېښودل او بیا به یې د خوشالۍ د محفل په ترڅ کې هغه پښتون، چې له نیکونو نه راهیسې مؤمن او مسلمان و په نوي نامه سره نوی او سوچه مسلمان ګڼلو. آیا دغسې چال چلند د نورو ولسونو د فرهنګ په له منځه وړلو کې بربنډ فرهنګي یلغار دی او که نه؟ او نه پوهېږم، چې ښاغلی زلمی "مومند" به دغسې کارونو ته د عربو فرهنګي یلغار وایي او که نه؟ که چېرې ځواب منفي وي؛ نو بیا دې لطف وکړي او ودې وایي د اسلام په نامه د نورو ولسونو د فرهنګ او کلتور نابودولو او محوه کولو کار د قرآن شریف د کوم آیت د حکم پر اساس جواز لري؟

ښاغلي زلمي "مومند" خو د اسلام په هکله د خپلو انګېرنو د تایید لپاره د یوې انګلیسي ژورنالیستې مېرمن "ریډلي" نوم هم اخستی او ویلي یې دي، چې د طالبانو له خوا ځو ورځې په جلال آباد کې پندي شوې وه. زه هم وایمه، چې رښتیا ما هم اورېدلي و؛ خو د دعوت د خپرونې په همدغې ګڼې کې، چې د زلمي "مومند" نیوکه پکې خپره شوې دغه خبر هم په 14م مخ کې خپور شوی دی. نوموړې مېرمنې ویلي دي، چې د طالبانو له خوا ترغیب او تشویقه شومه څو د اسلام دین ومنم. کله، چې له بنده راخلاصه شومه او لندن ته راغلمه، په لندن کې مې له یوه اسلامي عالم نه د اسلام د دین په هکله خپل معلومات بشپړ کړل او دا دی د اسلام دین مې ومانه. د دعوت خپرونه په خپل دغه خبر کې د نوموړې مېرمنې له خوا زیاته کړې، چې: په هېڅ یوه اسلامي هېواد کې د اسلام ریښتونی سیستم نشته. هغې د طالبانو او همدا راز د سعودي په چار واکو ګوت نیونې کړې او ویلي یې دي، چې اسلام یې د خپلو اهدافو او کلتوري چارو لپاره ګرځولی دی.

دا وه د مېرمن "ریډلي" خبره، چې بیا هم پر عملي سیستم راڅرخي، او د زلمي "مومند" انګېرنو ته منفي ځواب وایي.

### ز: مؤمن او مسلمان د قرآن له نظره:

د الحجرات سورآ په 14 آيت کې داسې لولو:

*ترجمه:* وويل صحرايانو ايمان راوړی دی موږ، ووايه محمد(ص): دوی ته له سره ايمان نه دی راوړی تاسې ليکن ووايئ اسلام راوړی دی موږ او له سره نه دی ننوتی ايمان په زړونو ستاسو کې.

*تفسير:* دلته دا رابنيي، چې ايمان او يقين کله، چې په پوره ډول "طريقه" په زړه کې را ښخ شي او بيخ ونيسي؛ نو په هغه وخت کې غيبت، عيب لټول او نور خراب خصلتونه له سرې ځنې لرې کيږي. هر هغه سړی، چې د نورو عيبونه لټوي او آزار ور رسوي؛ نو دی دې وپوهيږي، چې تر اوسه پورې يې ايمان په پوره ډول "طريقه" په زړه کې ځای نه دی نيولی. د ابن کثير رحمآ الله عليه په اتم جلد 24 مخ کې يو حديث ليکلی شوی دی:

## يا معشر من آمن بلسانه ولم يفض الايمان الى قلبه الا تغتابو المسلمين ولا تنبعو اعوراتهم.

*تنبيه:* له دې حديث څخه د ايمان او د اسلام فرق ښکاريږي او هم دا خبره له حديث د جبرئيل او نورو څخه هم ثابتيږي په حديث مرويه د ابي هريرآ رضي الله تعالى عنه کې، چې په کتاب الايمان د مشکوآ کې راغلی فرق د ايمان او اسلام داسې فرمايي:

المسلم من سلم المسلمون من لسانه و يده، و المؤمن من آمنه الناس عل دمائهم و اموالهم. " ترمذي "له اکثري نصوص څخه داسې معلوميږي، چې هغه ثوک، چې په اسلام راوړلو سره دا نظر هم ولري، چې له شکنجې د مسلمانانو څخه مامون پاتې شي او يا داسې نور اغراض، چې کفر ته اړونکي نه وي، غوره کړي. داسې شخص مسلمان بلل کيږي، چې هنوز نور د ايمان دده په زړه کې نه دی کامل شوی؛ نو هم دا وجه ده، چې له غيبت کولو او عيب لټولو څخه ځان نشي ساتلی. او هغه ثوک، چې بلا قيد او شرط او په خپل ذوق سره په اسلام کې داخليږي دا هغه اشخاص دي، چې نور د ايمان د دوی په زړونو کې کامل شوی؛ نو خولې او ټول حواس يې نه غواړي، چې په غيبت او يا نورو باطلو باندې وخوځيږي.

د الحجرات سورآ په 15 آيت کې په پرله پسې توګه لولو چې:

*ترجمه:* بې شکه، چې صادقان مؤمنان هغه کسان دي، چې ايمان يې راوړی دی په الله(ج) او په رسول دده "الله(ج)" باندې بيا شک نه کوي په ايمان کې او جهاد کوي دوی په مالونو خپلو سره، چې لګوي يې په اعلا د کلمآ الله کې او په ځانونو خپلو سره، چې جهاد کوي په لياره د الله(ج) کې دا کسان هم دوی رښتيني دي په دعوی د "ايمان" کې.

دا وه د مؤمن او مسلمان تر منځه د تفکيک روښانه بېلګه. او په دې توګه به موږ وپوهيږو، چې مؤمن ثوک دی او مسلمان ثوک؟ او دا به هم ووايو، چې هغو کسانو، چې د جهاد په نامه د جهاد له اړخه ميلياردران شوي دي؛ نو هغوی به په کومې کټه ګوری يا ډله کې راشي؟ ځکه، چې د هغوی اوصاف نه په مؤمن کې شته او نه په مسلمان کې. هغو، چې د جهاد په نامه او د جهاد له اړخه ميلياردران شوي او هر يو يې ددغو شتمنيو په زور د ناروا نفوذ او وجاهت خاوندان شوي دي، ځانته ځانته ټوپکيان لري، ځانته ځانته په ليارو او واټونو کې پاټکونه جوړوي او په دې توګه شوکې او جنايتونه کوي، بې ګناه انسانان وژني او خلق الله ازاروي. دغسې کسان، چې نه د مؤمن په ډله کې

راځي او نه د مسلمان په ډله کې آیا ددې ورتیا به هم ولري، چې د اسلامي ټولنې د رهبرۍ او زعامت مدعیان واوسي؟.

## ح: د مؤمن مسلمان د قتل په هکله:

د النساء سورآ په 93 آیت کې داسې لولو:

*ترجمه:* او هر څوک، چې مړ کړي کوم مؤمن په قصد سره او د مسلمان دغه قتل روا هم وګڼي؛ نو جزا دده دوزخ دی، په داسې حال کې، چې تل به وي دی دغه حلال ګڼونکی د قتل په هغه دوزخ کې او غضب "قهر" کړی دی الله(ج) په دده باندې او لرې کړی دی "الله(ج)" دا قاتل له خپل رحمت څخه او تیار کړی دی دده لره عذاب لوی.

*تفسیر:* یعني کوم یو مسلمان په غلطۍ سره نه؛ بلکې په قصد سره او سره له دې، چې ښه یې پېژني، چې مسلمان دی؛ وژني یې؛ نو دده لپاره په آخرت کې جهنم او لعنت او لوی عذاب دی او په کفاره سره ترې نه خلاصېږي او دنیوي سزا یې همغه ده، چې په (2) جزء د البقره په (178) آیت (22) رکوع کې تېره شوه.

*فایده:* د ګردو عالمانو په نزد "خلود فی النار" هغه چا لره دی، چې د مسلمان وژل حلال ګڼي. ځکه، چې د هغه په کفر کې شک نشته. یا باید له "خلود" تل تر تله ځنې تر اوږدې مودې پورې په جهنم کې هستوګن وي. یا خو به داسې قاتل مستحق د همداسې لوېې سزا وي. وروسته الله تعالی په خپله مالک او مختار دی او "خلود فی النار" او "خروج عن النار" دواړه دده کار دی، هر څه، چې اراده یې وي همغسې کوي. والله اعلم.

*یادونه:* د البقرآ سورآ "178" آیت د قصاص په هکله دی، چې باید اصیل سړی د اصیل سړي په بدل، مریي د مریي په بدل او ښځه د ښځې په بدل کې قصاص شي.

په پورته توګه مو ولوستل، چې: څوک، چې د یو مؤمن مسلمان سړي په قصدي توګه وژل روا ګڼي، د هغه په کفر کې شک نشته. ځکه، چې ښه یې پېژني مسلمان دی؛ خو وژني یې، او په دې توګه یو ناروا عمل، چې قتل عمدي دی روا ګڼي. له دې امله د دوزخ، لعنت او د لوی عذاب مستحق ګڼل کېږي. زموږ په هېواد کې دا پینځه ویشت کاله کېږي، چې د جهاد په نامه او د جهاد له اړخه میلیونو او میلیاردرو مشرانو په امر، چې هر یو یې ځانته مسلحه تنظیم لري د سوونو زرو مسلمانانو وینې تویې شوې او په لکونو کونډې، بورې، یتیمان یې تر مستقیم ظلم، زور او آزار لاندې ساتلي دي. لا، چې د اسلامي نظام د مشرتابه د واکمنۍ مدعیان هم دي. هغه د چا خبره، چې زه دې په پیرۍ کې شک لرمه، ته لا ځانته مریدان نیسې.

د قرآن کریم د روښانه آیت د حکم په اساس د دوی په مسلمانۍ کې شک دی؛ خو دوی د نورو مسلمانانو پر مسلمانۍ باندې نیوکې لري لا، چې هم په ډېره بې حیایۍ سره مدعیان دي او وایي، چې موږ د جهاد په لیاره کې قربانۍ ورکړې دي او له دې امله د مشرتابه حق زموږ دی. مګر داسې چا هم له هغوی نه ونه پوښتله، چې وروره! مهرباني وکړه او ووایه، چې: تا د جهاد له دوران څخه مخکې څه لرل؟ او اوس څومره کورونه، ځمکې، اپارتمانونه، سرایونه او په داخلي او خارجي بانکونو کې ډالرې

لري؟ دغومره ډېره سرمايه دې له کومې لياري پيدا کړله؟ که چېرې خبره د جهاد في سبيل الله وي؛ نو تا بايد د پيغمبر او د خلفاء راشدينو او نورو صحابه وو په څېر د لوی خدای(ج) د امر په اساس خپله سرمايه د جهاد په لياره کې لګولې وای او اوس دې هېڅ نه لرلای؛ خو ته په خلاف د هغوی لوی سرمايه دار يې او څوک ستا له لاسه په خپله سيمه کې يوه بسوه ځمکه هم د سر پناه د جوړولو لپاره نه شي پېرلی. دا ځکه، چې تا په ناروا توګه ډېرې پيسې تر لاسه کړې او هر چېرته، چې څوک خپله ځمکه، کور يا نور جايداد وپلوري ته يې په لوړه بيعه رانيسې. په دې توګه په لومړي پړاو کې د جهاد له اړخه په ناروا توګه دې ځان د شتمنۍ خاوند ګرځولی او په دې دويم پړاو کې په هماغه ناروا وو شتمنيو سره لګيا يې د بې وزلو انسانانو د ژوند سيمه تنګوې، او له دې امله پر خلق الله باندې ظلم او تېری کوې.

دا خو و زمونږ په هېواد کې د جهاد د ميراث خورو حالت. د اسلامي نړۍ په نورو عربي او غير عربي هېوادونو کې هم څه ناڅه په ډېر لږ توپير سره د واکمنۍ د مدعيانو حالت هم لا داسې دی.

## ط: په نړۍ کې د يو واحد اسلامي عملي سيستم:

په افغانستان کې ځان ځاني او د شتمنيو لمانځنه مو په خپلو اسلامي ډلو او د جهاد په مدعيانو کې وليدله. ښه به وي، چې وڅېړو آيا په ټوله اسلامي نړۍ کې د داسې ځواکونو له خوا د يو واحد اسلامي سياسي سيستم د جوړېدلو امکان شته او که نه؟ ځواب يو دی او هغه دا، چې: هغوی، چې په خپل کلي، خپل ښار او خپلې سيمې کې د واحدې مشرۍ پر واکمنۍ نه جوړېږئ؛ نو په ټوله اسلامي نړۍ کې به څنګه پر يو واحد سيستم او واحد مشرتابه باندې روغې جوړې ته ورسېږي؟ له دې امله ما مخکې تر دې په خپلې ليکنې کې ويلي و، چې اسلامي نړۍ اوس اوس پر يو واحد عملي سيستم باندې نه شي راټولېدلی. مګر ښاغلي زلمي "مومند" په خپل غبرګون کې زما خبره له بنسټه رد کړله او مدعي شو، چې لکه څنګه، چې پخوا هم اسلامي نړۍ پر يو واحد عملي سيستم راټوله شوې وه، له دې وروسته هم دا خبره ممکنه ده، چې يو ځل بيا پر يوواحد عملي سيستم راټوله شي. هغه د خپلې خبرې په تاييد د مثال په توګه د تېرو زمانو اسلامي خلافتونو ته د دليل په توګه اشاره کړې او په اوس مهال کې يې په پاکستان، افغانستان او يران کې د مېشته وو سنيانو او شيعه ګانو د يو ځای ژوند کولو ثبوت ښودلی دی.

فکر کوم، چې تاريخي پېښې د زلمي "مومند" د فکر او اند په خلاف دريځ لري. هغه دا، چې: په عملي سيستم کې د اسلام لومړنی سوچ خلافت د حضرت ابوبکر صديق(رض) او د حضرت عمر فاروق(رض) خلافتونه وو، چې د پيغمبر(ص) پر لياره به يې يون لاره؛ خو لا هم د عربو په جزيره کې محدود وو. کله، چې ددغه واحد سيستم خلافت حضرت عثمان(رض) ته رسېږي څه ناڅه خپل سوچه توب ښيي. مګر هغه حضرت په شهادت رسېږي او د خلافت دنده حضرت علي کرم الله وجهه ته سپارل کېږي. په دې مهال کې، چې د خلافت د واکمنۍ سيمه د عربو د جزيرې نه بهر لا تر افغانستانه هم رسېدلې وه، پر خلافت باندې نزاع او جګړه راپېښېږي، چې په نتيجه کې حضرت علي کرم الله وجهه له خلافت ګوښه او د خلافت واګې حضرت معاويه ته سپارل کېږي او حضرت معاويه؛ نو د خپل خلافت د واکمنۍ واګې د سوټې په زور ساتي. که د هغې زمانې تاريخي پېښو ته وکتل شي، هېڅوک به داسې ونه شي ويلی، چې ګنې د امويانو او بيا د عباسيانو په خلافت کې عربي او غير عربي مسلمانان ټول په

ټوله د خلافت په عملي سیستم باندې راضي وو، او اسلامي نړۍ په یو واحد اسلامي عملي سیستم کې ژوند کاوه. په دې توګه باید ووایو، چې په ټوله اسلامي نړۍ کې د یو واحد اسلامي عملي سیستم واکمنېدل یوه خبره او په یوه سیمه کې د سني او شیعه د ګډ ژوند لرل بله خبره ده، چې سره جلا موضوعګانې دي او هېڅ ممکن نه دی، چې یو د بل سره پیوند ومومي. راغلو دې ته، چې آیا د تاریخ په اوږدو کې پر اسلامي نړۍ باندې کوم یو واحد اسلامي عملي سیستم کله هم واکمن شوی و او که نه؟ دغې خبرې ته تاریخ په خپله په روښانه توګه ځواب لري او زه نه غواړم له دې نه زیات په دې هکله څه ووایم.

*ی: نارینه او ښځینه وو ته مساوي مکافات او مجازات یا په بله ژبه مساوي حقوق:*

د آل عمران سورآ، چې مدني دی په تلاوت کې دریېم او په نزول کې **(89 یم)** سورآ دی په **(195 یم)** آیت کې داسې لولو:

*ترجمه:* پس قبولې کړې دوی لره دا دعاوې رب د دوی په دې شان، چې بېشکه نه ضایع کوم عمل د هېڅ عمل کوونکي له تاسې نه، نارینه وي دا عامل یا ښځینه وي. ځکه، چې ځینې ستاسې دې له ځینو نورو او ماته په مکافات کې ګرد سره یو یئ.

*تفسیر:* یعنې نارینه وي که ښځینه، زموږ په دربار کې د هېڅا خواري او تکلیف نه ضایع کېږي. هر څوک، چې هر کار وکړي ثمره به مومي. دلته عمل شرط دی. د نېک عمل په وسیله یوه ښځه هم د خپل استعداد سره سم د آخرت هغه لوېې درجې حاصلولی شي، چې نارینه یې حاصلولی شي. کله، چې تاسې نارینه او ښځې د انساني یوې نوعې افراد یئ او له یوه آدم علیه السلام څخه پیدا شوي یئ او په اسلامي رسۍ سره تړلي یئ، او یو اجتماعي ژوندون لرئ، او د معاشرت په چارو کې ګرد "ټول" سره شریکان او مله یئ؛ نو عملونه او د هغوی ثمرات مو هم یو شی وګڼئ.

په روایتونو کې راغلي دي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ام سلمآ(رض) عرض وکړ: یا رسول الله(ص) په قرآن کریم کې هېچرې زموږ د ښځو د هجرت او نورو حسنه اعمالو په نسبت کوم خاص ذکر نه دی راغلی. نو د هغه ځواب په دې آیت سره ورکړل شو.

د پورتني آیت د حکم پر اساس د ښځو او نارینه وو تر منځ ټول هغه توپیرونه او امتیازات، چې په ټولنه کې د نر او ښځې تر منځ واکمن وو، لغوه شوي او دا خبره په ډاګه شوې، چې د دواړو لپاره مکافات او مجازات په برابره او مساوي توګه تاکل کېږي. وګورئ مکافات د ښو کارونو او اعمالو لپاره او مجازات د ناوړه کارونو او اعمالو لپاره وي. که څوک په ټولنه کې ددې واک او اجازه ونه لري، چې په آزادانه توګه د خپل ژوند ازمېښت وځلوي، هغه به څرنګه د مکافاتو یا د مجازاتو وړ او مستحق وګرځي. د ژوند په ډګر کې د ازمېښت لپاره، چې ښایي دغه خبره د انسان د خلقت ریښتینی راز وګڼل شي. آزاد نه وي او لکه څرنګه، چې په ځینو اسلامي ټولنو کې لا تر اوسه پورې هم ددغه ذهنیت واکمني دوام لري، چې ښځه نه شي کولی له کوره بهر په آزادانه توګه کار او فعالیت وکړي، له بنسټه غلطه او ناروا ثابتېږي. ددې آیت دغه حکم ددې سره سره، چې ښځو ته لومړنی حق، چې ځان پېژندنه ده ورښودلې، هغوی ته یې په ټولنه کې لا د ټولنې د کار په پراخه ډګر کې هم د کار او ازمېښت د مساوي حق ضمانت کړی دی. ځکه، چې په دې آیت کې دواړو ته مکافات او مجازات په مساوي او برابره توګه

اعلان شوی دی. له دې امله هېڅوک نه شي کولی، چې وو ايي په اسلام کې د ښځې او نر لپاره مساوي حقوق نشته. يا دا ، چې ښځه نه شي کولی له کوره بهر کار يا د زده کړې لپاره لاړه شي.
ددې آيت له محتوا نه دا هم ثرګند ېدلی شي، چې په آخرت کې هم لکه څرنګه، چې نارينه وو ته په مکافاتو کې جنت، حورې او غلمان ور رسېږي. ښځو ته هم په هماغه توګه جنت، حورې او غلمان په مکافات کې شته؛ نو د پښتو ژبې ددې لنډۍ پر مخ چې وايي:

په دنيـــا ښـــه راسره وکـــــــــــړه
په آخرت کې د هر چا بېل دي کورونـــه

دا هم په ډاګه کوي، چې په آخرت کې د مکافاتو له امله ښځو ته هم لکه د نارينه وو په څېر په مکافاتو کې جنت، حورې او غلمان په انتظار کې دي؛ نو زما خبره د هغو ښځو خاوندانو ته ده، چې هغوی په دنيا کې د ښځو حقوقو ته په درنه ستر ګه نه ګوري، خپلو ښځو سره د حيواناتو په څېر چال چلند لري او رنګا رنګه سزاګانې ورکوي. د دا رنګه چال چلند خاوندان به وکولی شي په اخرت کې د خپلو دنيايي مېرمنو سره يو ځای ژوند وکړي او که نه؟ ځواب څرګند دی، چې:
په آخرت کې د هر چا بېل دي کورونه

## ک: ږيره او مسلماني:

ښاغلی زلمی "مومند " د ږيرې په هکله ډېر زيات زور ېدلی دی، چې زه نه غواړم څوک له ما څخه خواشينی وي. ما په ټول قرآن کريم کې يوازې يو آيت ومونډ ، چې د مفسر له خوا په تفسير کې په ږيرې پورې يې هم تړاو ميندلی، هغه هم داسې لولو:
د النساء سورآ 119 آيت:
*ترجمه:* شيطان وايي: او زه به هرو مرو ګمراه کوم خامخا دوی او هرو مرو زه به په باطلو اميدو کې خامخا واچوم دوی او هرو مرو به زه امر وکړم خامخا دوی ته، چې پس هرو مرو خيروي به دوی خامخا غوږونه د چارپايانو او زه به هرو مرو امر وکړم خامخا دوی ته پس هرو مرو تغيير به ورکړي دوی خامخا پيدا ښت د الله(ج) ته.
*تفسير:* يعني هغه کسان، چې زما په برخه کې راځي دوی به له حقې لارې څنې ګمراه کوم او د دوی په زړونو کې به د دنيوي ژوند او د فاني دنيا مينه اچوم او دوی به له قيامت، حساب، کتاب او نورو اخروي امورو څخه غافل کوم. او دا خبره به دوی ته ورښيم، چې د څناورانو غوږونه څيرې کړي او د بتانو په نامه يې خوشې کړي، او د الله تعالی پيدا کړې صورتونه او د هغو مقررې کړې څېرې واړوي.
*فايده:* د کافرانو دستورو ، چې د غوا ، خوسي، مېږې "ګډې "، ورې او اوښ "جونګي " به يې د بت په نامه کول، او د هغو غوږونه به يې څيرول او په غوږونو کې به يې نښې اچولې، بيا به يې سرخوشې پرېښودل. د صورت بدلول لکه خصي کول يا په ستنو سره د بدن سورې کول او په هغه سره شنه يا بل ډول خالونه اېښودل يا زرغون داغ ورکول يا د وړوکي پرسر باندې په کوم اسم او رسم سره کمڅۍ او بل رنګ وېښتان د بل چا په نامه اېښودل "يا په منهياتو " کې د خپلو اندامونو خوځول، يا د حلالو تحريم،

يا د حرامو تحليل او نور، چې په موږ مسلمانانو باندې لازم دي، چې له دغو ګردو ځنې ځانونه وژغورو.
د ږيرې خرېيل "کلول" هم په همدې تغيير کې داخل دي او د الله تعالی هر ځو مره احکام، چې دي د هغه حرامول، يا يې حرام حلال ګڼل، انسان له اسلام ځنې باسي؛ نو هر څوک، چې په داسې خبرو کې مبتلا وي په ياد دې ولري، چې د هغه شيطان په همغه ټاکلې برخه کې داخل دی چې ذکر يې پاس وشو.
دا وه د آيت ترجمه او د مفسر تفسير. که په رښتيا سره د ږيرې په خرېيلو "کلولو" په څېره کې تغيير او بدلون راځي؛ نو په دې حساب او سني د سک د طريقې پيروان، چې نه ږيره خريي، نه بريت او نه د سر وېښتان؛ نو د مفسر په قول د دې آيت د حکم سره سل په سلو کې سم روان دی. او دا حکم يې په پوره توګه عملي کړی دی. کنه؛ نو اصلي څېره هغه ده، چې انسان له موره پيدا شي. که په پيدا ايښي څېره کې کوم مصنوعي بدلون راوستل کېږي البته هغه به په حرامو کې راځي؛ نو په دې اساس کله، چې ماشوم له موره پيدا شي هغه نر وي يا که ښځه امرد وي. يعنې پر مخ يې وېښتان نه وي؛ خو کله، چې د بلوغ حد ته ورسېږي او بالغ شي، که نارينه و؛ نو پر مخ يې وېښتان رازرغون شي او که ښځينه وه؛ نو مخ يې په خپل حال پاتې کېږي؛ نو په دې توګه دغه د مخ وېښتان د هغه د وجود نه بهر د هغه د جنسي پېژندګلوۍ نښه شي. له دې امله زما په اند ږيره نه يوازې، چې د سړي د پېژندګلوۍ نښه ده؛ بلکې د سړيتوب ګاڼه يې هم ګڼلی شو. دلته ده، چې په دې هکله ټولنه د تبليغ، ترغيب او تشويق له لياري پوهونه غواړي، نه د سوټي، په وسيله وهل ټکول، بند او ځنځير. تر دې علاوه که څوک ووايي، چې د ږيرې اوږدول د احاديثو په قول فرض دي يا که د زلمي "مومند " په څېر څوک ووايي، چې ږيره سنت موکد او واجب ده. يا که څوک ووايي، چې نه فرض ده نه واجب ده او نه سنت ده. تر اوسه پورې زما تر سترګو څه نه دي راغلي. په قرآن کريم کې، چې د اسلامي دين د اصولو اصل دی. په دې هکله په روښانه توګه ما څه نه دي ليدلي، چې فرض وګڼل شي. په احاديثو کې؛ خو زما پوهه نيمګړې ده. که چېرې په ثقه وو احاديثو کې داسې څه وای؛ نو ښايي ډېر پخوا به د ټولنې د پوهولو لپاره خپاره شوي وای. سره د دې هم د دې بحث مخه پرانستې پاتې ده، هيله ده که چا په دې هکله قرآني آيت يا کوم ثقه حديث ومونډ هغه به اسلامي ټولنې ته وړاندې کړي. راغلو دغه ذهنيت ته، چې په دغه تېرو دوه دريو لسيزو کې زموږ پر افغاني ټولنې يې کلکه او نه ماتېدونکې واکمني لرله، چې: ږيره لرل فرض دي او که څوک ږيره خريي "کلوي " هغه د فرضو تارک دی. يا دا ، چې حرام يې حلال ګڼلي او کافر دی. د تامل وړ او تر پوښتنې راتلونکی امر دی.
بايد ارومرو وپوښتل شي هغه کسان يا ډلې، ټپلې او ځواکونه، چې اسلام يوازې او يوازې پر ږيره لرلو مشروط او محدود ګڼي، هغوی به په خپله د دا رنګه ذهنيت د لرلو او چال چلند سره د اسلام د دين له اصولي دايرې څخه وتلي وي او که نه؟
ږيره د سياست په څپو کې کله فرض شي، کله واجب شي، کله سنت شي او کله هېڅ. دغې ستونزې زموږ په سيمه کې يوازې زموږ د ولس د هر رنګه بنسټيزو پرمختګونو مخه ډب کړې او لا ، چې يې د ځينو بې ګناهو مګر سوچه مسلمانانو افغانانو ژوند هم اخيستی دی. هغوی، چې زموږ ولس د ږيرې په نه لرلو زورولی، رټلی، وهلی او وژلی او همدا رنګه هغوی، چې زمو ولس د ږيرې د لرلو په تور ربړولی او له ژونده بې برخې کړی دی، دغه دواړه ډلې ارو مرو زموږ د ولس دښمن او د تاريخ جنايت کاران شمېرل کېږي او بايد وغندل شي.

# (نچوړ)

څه، چې ما ویلي دي او څه، چې په غبرګون کې نورو وویلي او څه، چې په قرآن کریم کې ویل شوي دي په تېرو کرښو او مخونو کې مو ولوستل. د هغو ټولو څرګندونو پر مخ دغو لاندېنیو پوښتنو ته په رښتینه ځواب اړین بریښي:

1- ژبه د لوی خدای(ج) مخلوق دی او که نه؟ که چېرې ژبه د لوی خدای(ج) مخلوق ګڼل کېږي؛ نو هغه کسان، ډلې، تېلې یا ځواکونه، چې د ځینو ولسونو د ژبو سره دښمني کوي، هغوی د لوی خدای(ج) د مخلوق سره د دښمنۍ له امله د لوی خدای(ج) دښمنان هم ګڼل کېږي او که څنګه؟ د قرآن کریم د الروم سورة د 22 آیت په مخ ژبه د لوی خدای(ج) د قدرت د سترو نښو څخه شمېرل کېږي آیا د لوی خدای(ج) د قدرت د نښو سره دښمني به د هغه لوی ذات سره دښمني نه وي؟.

2- نیشنلیزم کفر دی او که نه؟ که کفر وي په کوم دلیل؟.

3- ملت پالنه، ملت روزنه، ملت وینبونه او ملت جوړونه د نیشنلیزم له مبادیو څخه شمېرل کېږي او که نه؟.

4- د موسی علیه السلام د دین په بنسټ کې ملت پالنه، ملت وینبونه، ملت روزنه، او ملت جوړونه ځلېدلې ده او که نه؟.

5- د موسی علیه السلام دین ته سوچه نیشنلیزم ویلی شو او که نه؟.

6- د بني اسرائیلو همدا اوسني دولتي تشکیلات پر اسرائیلي نیشنلیزم ولاړ دي او که نه؟

7- د اموي، عباسي او عثماني خلافتونو ته سوچه اسلامي خلافت ویلی شو او که نه؟.

8- کله هم د خلفای راشدینو نه وروسته چېرته هم د اسلام د دین پاک، سوچه او سپېڅلی سیاسي نظام رامنځته شوی او که نه؟.

9- د اسلامي نړۍ لپاره په اوسنیو واکمنو حالاتو او شرایطو کې د خلفای راشدینو د اسلامي خلافت په څېر سیاسي واکمني به غوره وي او که نه؟ که چېرې غوره وګڼل شي؛ نو د جوړولو امکانات یې څرنګه مطالعه کېدلی شي؟.

10- زموږ په هېواد کې او همدا رنګه په ګاونډیو اسلامي هېوادونو کې، چې کومې سیاسي اسلامي ډلې، تېلې او ځواکونه کوم، چې څه په واکمنۍ کې دي او څه د واکمنۍ لپاره په هلو ځلو بوخت دي، د اسلام د دین له نظره د اسلامي خلافت د جوړولو وړتیا لري او مستحق ګڼل کېږي او که نه؟.

11- په افغانستان کې د جګړې یا د جهاد له امله را زېږېدلي میلونران او میلیاردران، چې څه د مشرانو او څه د قوماندانانو په نومونو همدا اوس اوس په افغاني ټولنه کې لا، چې د ټولني پر ولیو بار دي او واکمني لري د اسلام د دین د اصولو پر مخ سوچه مؤمنه مسلمانان ګڼل کېږي او که نه؟.

12- د اسلام د دین لاربنود حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او د هغوی صحابه کرام او خصوصاً

خلفای راشدینو؛ خو د اسلام د دین لپاره د جهاد په لیاره کې خپلې تولې شتمنۍ وښندلې او کله، چې له دې دنیا نه یې رحلت کاوه خالي لاسونه وو. مګر زموږ په هېواد کې لا زموږ په ګاونډیو اسلامي هېوادونو کې د اسلام او جهاد په نامه یو شمېر زیاتو وګړیو ډېره زیاته شتمني تر لاسه کړې او د همدغو ناروا وو شتمنیو په زور پر خپلو هېوادوالو واکمني کوي. آیا ددغو دغه عمل اسلامي عمل دی او دوی په رښتینه توګه سوچه مسلمانان ګڼل کېدلی شي او که نه؟.

-13 هغو کسانو، چې د افغانانو غیر عربي نومونه په عربي نومونو بدل کړل او خپل دغه عمل یې اسلامي وګڼلو، د اسلام د پاک او سپېڅلي سوچه دین د احکامو سره برابر دی او که نه؟.

-14 یهودي امت، عیسوي امت او اسلامي امت د ابراهیمي ملت غړي دي او که نه؟ که چېرې دغه درې واړه امتونه د ابراهیمي ملت غړي وشمېرل شي؛ نو ددغو درې واړو امتونو تر منځ دښمني، جګړه او وژنې روا دي او که نه؟.

-15 په اسلامي امت کې د رامنځته شویو مذاهبو تر منځ دښمني، جګړې او وژنو ته په کومه سترګه کتلی شو؟.

-16 زلمي "مومند" په خپلې لیکنې کې ږیرې ته سره ددې، چې سیاسي رنګ ورکړی هغه یې سنت موکد او واجب ګڼلې ده. مګر د طالبانو د نظام د سیاسي واکمنانو په ګروهه ږیره له فرضیاتو څخه ګڼل کېدله او چا، چې ږیره خرېلې وه، هغه ته به یې ښه درنه سزا ورکوله. لکه ښکنځل، وهل او بندي کول. پوښتنه داده، چې ږیره سنت ده؟ واجب ده؟ او که فرض ده؟ دا ځکه، چې سزا؛ خو د جرم د ماهیت پر مخ ورکول کېږي؛ لکه د قباحت د جرم لپاره قباحتي سزا. د جنحې د جرم لپاره د جنحې د جرم سزا او د جنایت د جرم لپاره د جنایت د جرم سزا. که چېرې ږیره لرل فرض وي؛ نو تارک یې د جنایت د جرم مستحق دی. او که چېرې واجب وي؛ نو د جنحې د جرم د جزا وړ دی او که چېرې سنت وي؛ نو د قباحت د جرم د سزا وړ ګڼل کېږي. مګر طالبانو به بې له دې، چې د ږیرې د خرېیلو د جرم ماهیت او نوعیت تثبیت کړي د جنحې د جرم سزا ورکوله. یعنې په قول کې به یې د ږیرې خرېیل عمل جنایت ګاڼه او په عمل کې به یې د جنحې د جرم سزا ورکوله. او په دې توګه د هغوی د قول او عمل تر منځ توپیر موجود و.

-17 آیا مذاهب د سیاست د څپو زېږنده ده او که نه؟.

-18 ډېره غتېه او هر څه د مخه لومړنۍ پوښتنه داده، چې آیا د دین یا مذهب په نامه د نورو ولسونو فرهنګي دودونه او کلتوري رواجونه له منځه وړل روا عمل دی او که نه؟ که روا وګڼل شي په کومو دلیلونو؟.

دغو پورتنیو پوښتنو ته که چېرې په رښتینه توګه څرګندونې او معلومات وړاندې شي، زه باور لرم، چې خامخا او ارومرو هر وګړی به ووایي، چې: هر دین په خپل بنسټ کې نیشنلیزم دی. یعنې ملت پالنه، ملت وینېونه، ملت روزنه او ملت جوړونه د هر دین د اصولو څخه ګڼل کېږي. لکه څنګه، چې موسی علیه السلام هم خپل قوم یعنې بني اسرائیلو ته دغه خدایي موهبت په لاس کې ورکړ او ویې ویلې: ای قومه زما ! که چېرې غواړئ، چې آزاد او خپلواک ژوند ولرئ؛ نو د عمالقه وو د قوم سره وجنګېږئ، هغوی له دې ښاره وباسئ او ښار تاسې ونیسئ، چې دا د لوی خدای(ج) وعده ده، او دغه وعده یوازې ستاسې له خوا د جهاد او جګړې له لیارې تحقق مومي.

لکه څنګه، چې د موسی علیه السلام د مبارزې د زړې نچوړ وینو دا راته جوته کېږي، چې د هغه

مهال د سیمه ییزو او ټولنیزو ولسي شرایطو تر مخه د ملت پالنې، ملت روزنې او ملت جوړونې لپاره د لوی خدای(ج) له لوري یو رنګ احکام او هدایات راغلي، او بیا د عیسی علیه السلام په مهال کې د ملت جوړونې، ملت روزنې او ملت پالنې لپاره د ځینو بدلونونو سره د لوی خدای(ج) له لوري بل رنګ احکام او هدایات راغلي او همدا رنګه د ابراهیمي ملت د بشپړې جوړونې، روزنې او پالنې لپاره د حضرت محمدصلی الله علیه وسلم په مهال کې د هغوی په وسیله د اسلامي امت د موجوده دین احکام او هدایات راغلي دي.

او همدا رنګ دا هم د منلو وړ بربښي، چې: د المؤمن سورآ د **78** آیت پر مخ د نورو ملتونو د جوړونې، پالنې او روزنې لپاره هم د هغوی د مهال د سیمه ییزو، ټولنیزو او ولسي شرایطو سره سم د احکامو او هدایاتو سره یو ځای استازي استول شوي وي.

ددې اصل پر مخ ویلی شو، چې هر کله او په هر ځای کې لومړی د ملت زړی لکه د بني اسرائیلو په څېر په یوه قبیله، څانګه یا ولس کې اېښودل شوې او زرغونه شوې او بیا ددغه زړي د ونې ښاخونو د نورو، ولسونو پر سر سیوری غوړولی دی.

دین، چې د ملت جوړونې اصلي جوهر دی؛ لکه د معمار په څېر یې هم د ملت د تعمیر د بشپړ اعمار لپاره له ژبې او وینې نه د خښتو، تیږو او سیمټو په څېر کار اخیستی دی. او دغه توکي لکه، چې د موسی علیه السلام په مبارزه کې وکارېدل، هر کله او د هر ملت په جوړونه کې هم کارېدلي دي، چې ځوک ترې سترګې نه شي پټولی او هېرولی یې هم نه شي. همدغه لامل دی، چې ګروهې او ولس ته په لنډه توګه د دین نوم ورکړل شوی او دغو دوو توکو یعنې ملت او عقیدې باندې د دین نوم اېښودل شوی دی؛ لکه، چې دین بې له ولسه، او ولس بې له ژبې څه ارزښت نه لري، همدا رنګه هم ژبه بې له ولسه او ولس بې له ګروهې خپل ځلښت نه شي ځلولی او ارزښت نه شي تر لاسه کولی.

# بولله

ای لویه خدایه!
ای لویه خدایه!
څه غوندې سوله
څه غوندې روغه
څه غوندې مینه- د ورورولۍ را
څه غوندې ژوند
څه غوندې خوند
یو څه ریښتینه- سمونولۍ را

ای لویه خدایه!
ای لویه خدایه!
هاغه د پلار
نغری مې تود کړې
هاغه د کلي
ویاله مې رود کړې
څه غوندې کښت
څه غوندې زرعه
په خپل پټي کې- د خپلولۍ را

ای لویه خدایه!
ای لویه خدایه!
د هجر شپه مو
چې پرې رڼا شي
چې یارانه مو
ښه په وفا شي
څه غوندې ستوري
څه غوندې سپوږمۍ
څه غوندې لمر- بیا پر بلۍ را

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
چې واک مې خپل وي
په هر یو کار کې
چې ژواک مې خپل وي
په هر دیار کې
څه غوندې واک
څه غوندې ځواک
یو څه غښتلی- د ژوند بولۍ را

❋ ❋ ❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
له ولږې نه یو
هیڅ چرته تللي
له وچکالیه
تښتو له کلي
څه غوندې اوبه
څه غوندې دانه
د ژوند درمند کې- دلۍ را

❋ ❋ ❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
لږ څه خواږه کړه
دغه تراخه مو
لږ څه سیده کړه
دغه کاږه مو
څه غوندې هوسا
څه غوندې بسیا

یو څه نېکمرغه- د ژوند سلګۍ را

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
بیا مې تاریخ ته
سر لوړی بوځه !
بیا مې په سیمه
پوهیالي روزه !
څه غوندې بریا
څه غوندې غوریا
په هر مهال کې- د اتلولۍ را

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
دې بېلتانه یم
ډېر ځورولی
ډېرو وعدو یم
په زړه داغلی
څه غوندې وفا
څه غوندې وصال
د ژوند سندره- د ژوند ډولۍ را

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
بیا کړه زرغونې
وچې هیلې مو
بیا کړه ودانې
ړنګې دېرې مو
څه غوندې هڅه

څه غوندې وسه
دې مړوای تن ته- د ژوند ګولۍ را
❋❋❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
په هاغه بڼ کې
د پلار نیکه مو
وتړوکوه بیا
زړې اوده مو
څه غوندې ګل
څه غوندې تل
یو څه ښېرازه- د ښې سیالۍ را
❋❋❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
د سر شملې ته
پګړۍ ریښمینه
د خپو خپلۍ ته
جرابې وړینه
څه غوندې نوې
څه غوندې ښکلې
تن ته جامې را- سر ته خولۍ را
❋❋❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
د فرید خان
د خوشال خان
د میرویس خان
د احمد خان

څه غونډې هوډ
څه غونډې هڅ
د پښتون والي- ریښتین ولۍ را
❋ ❋ ❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
زمونږ هرې پېغلې
هر یو زلمي ته
لا هم تر تله
هر یو بچي ته
څه غونډې ننګ
څه غونډې رنګ
څه غونډې وینه- د پلرګنۍ را
❋ ❋ ❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
دا پردېسي مو
ډېره اوږده شوه
دا بې وسي مو
لا هم توده شوه
څه غونډې وس
څه غونډې رس
په خپل هېواد کې- د نېکمرغۍ را
❋ ❋ ❋

ای لویه خدایه !
ای لویه خدایه !
څوک چې پر مونږ
سوچ کا د بلوسې
هغه هم ژر

له منځه يوسې
څه غوندې دوستان
څه غوندې ياران
د ژوند پر سيمه- غاړه غړې را

❋ ❋ ❋

اې لويه خدايه !
اې لويه خدايه !
چې مو مشرانو
شمله شي لوړه
چې مو کشرانو
هڅه شي وړه
بيا مو هر يو ته
په ښې سيالۍ کې
لا ښه غښتلی- اس د سورلۍ را

❋ ❋ ❋

اې لويه خدايه !
اې لويه خدايه !
بيا مې امين کړه
هره غوښتنه
چې مې کړه وړاندې
لويه څښتنه
يو څه په ژوند کې
له برمه ډکه
له خپله وره- ډکه ځولۍ را

❋ ❋ ❋

*بن جرمني*
*200/7/10*

## د زرغون خان نورزي په ياد

چې نه مې راځي سترګو ته هېڅکله هېڅ مهال
راځه خو مې يو ځلې په ورشو کې ته د خيال

هېڅ ومې نه ليدي که مې کتلې په هر لوري
له ښاخه مې د پوهې وشلېده د فکر تال

که وهم که ګومان دی، که مې دي څه نور حواسه
په لټه د تا ښکاري، ستړي ښه ملال

وښايه چې يې چېرې؟ او له کومه ځايه څارې؟
پر ما دې هغه شوي، چې راغلي پر بلال

د لمر په څېر ښکاره شه، تود مې کړه پر خپلو وړانګو
يخنۍ د بېلتانه ته کړه لمبه اور د وصال

دا څه د ژوند پر سيمه مې، د غم وريا راغلې؟
هر څوک دې نن د ښمن ته، د وژلو مې دلال

چې ورنګوي سيمه ښه، زما د تن په وينو
ګاونډ کې مې هر ځواک دی، راولاړ لکه دجال

کودي مې پر سر مات شول، د منګي زما د کور
اوبه مې لا هم وچې وې چې څښل مې په تول کال

راوښايه وريا به د خوښۍ له کومې راشي؟
منګي به راته جوړ کړي د خوښۍ کوم يو کلال؟

بيا هم به په ښتانه شي په دې سيمه د سيالۍ کې
سرلوړي، ښه هوښيار، بسيا ، نېکمرغه او ننګيال؟

را ياد مې زرغون خان شو د نورزيو د ټبر
هغه چې پښتو ناوې ته اوبدلو د سر شال

هغه چې په میړانه کې نامتو د پښتنو و
هغه چې د پښتو و د ادب د زنې خال

هغه چې به په ژبه د پښتو شعر ویلو
هغه چې د پښتو ادب ته وبانبه جلال

هغه خو و د سیمې د ادب ښه پهلوان
هغه و په سیالانو کې، لا ښه غښتلی سیال

هغه رانه هېر نه کړې د پېریو په اوږد و کې
هغه په یاد ساته، زمونږ د هر یو فرهنګپال

ښاغلی هېواد مل چې په پښتو پښتون مین دی
په هکله د نوروزي د لمانځنې وکړ سوال

ښاغلی هېواد مل دی او ښاغلي یې اندونه
ښاغلي دي کارونه لا د دغه هېواد پال

هوسا، بسیا، نېکمرغه او اوږد ژوند ورلره غواړم
جنت کړې ور په برخه، بې خلله بې زوال

"انځور" نه کړې رنځور، چې لا تندی یې دی روښانه
له "ستوریو" کړې راڅرګنده هره خوا مې د هلال

ای ته چې نه مې ذهن کې ځایېږې، نه دی وینم
ساته ما "ځاپی" هم له هرې پېښې د وبال

بن جرمني
**3/3/2001**

یادونه:

1. *هېواد مل- زلمی.*
2. *انځور- زرین.*
3. *ستوریو- کبیر ستوری او زامن یې.*

# طالب ته!

زه وايم په تا پسې، ته وايې په ما پسې
وايي نور عالم پر ما او تا پسې

خومره پسپسکې چې دي ما پسې
هومره پسپسکې دي هر چا پسې

دا خو دغه ژبه ده په خولې کې مو
اوړي چې را اوړي هره خوا پسې

جوړې کړې فتنې هر کله هر رنګه
راوړې د تيارو لښکر رڼا پسې

مه ګڼه سيالګره د سيالۍ په دود
هر څه که تباه شي په بلا پسې

هر څه ته اړتيا شته د ژوند سيمه کې
نه يوازې زېرمې د عقبا پسې

نه يوازې زه د ژوند اړتيا غواړم
ته لا څغلې هم د ژوند اړتيا پسې

زه درته دعا د خير کومه تل
ته راته پرانيزې خوله ښېرا پسې

زه وايمه ورانې را ودانې کړه
ته مې ورانوې ودانې لا پسې

ما ګڼل چې تا سره به وپايم
تا کړمه له دې هيلې جلا پسې

زه وايمه غلې اوسه کار وکړه
ته کوې غوغا لا په غوغا پسې

زه وایم لومړی خو ځان غښتلی کړه
ته کوې کنځا په غښتلیتا پسې

خوا کې ګاونډیان شول اتومي طاقت
ته نه لرې هېڅکله پروا پسې

غواړي رقیبان چې ځان پیاوړی کړي
ته لګیا د ږیرې په سودا پسې

هاغه د فساد لښکرو ولوټل
هر څه شتمنۍ مو د بابا پسې

هاغه غټ شریر جګړه مار اخلي لا
زمونږ د ستر دښمن نه وسلې لا پسې

هاغه د فساد او شر لښکر د بل
نه غواړي افغان ته ژوند هوسا پسې

وایه خپل راتلونکي ژوند ته څه لرې؟
ده چې توره شپه ستا د سبا پسې

ته وایې په فقر قناعت وکړه
کښېنه نور د لوی څښتن رضا پسې

فقر که د ژوند څه شتمني وي خو
ټول عالم ملنګ به وای په دا پسې

نه شته پر نېستمن څه فرایض د ژوند
نه ورځي ګدا ، هېڅ په ګدا پسې

ښه ده شتمني لا هم شتمن دي ښه
ځي ملنګ فقیر په اغنیا پسې

ووایه ! تا کړي دي بچو ته څه؟
وایې بد او رد چې په دادا پسې

ای چړي ! په خدای که به ملا شې ته
مه ځه نور په دې نیمګړي ملا پسې

هلته د مکې او مدینې ترمنځ
شیخ ځي د خپل بت په تماشا پسې

دلته د اسلام په نوم بمونه خو
ږدي په ماتولو د بودا پسې

هلته د عبرت د ځای په نوم شي بت
دلته شي د کفر سل غوغا پسې

څه شوه که له پوهې برخمن نه یو
یا مونږه شته سترګې ښې بینا پسې

ګوري به عالم په ښو رڼو سترګو
ستاسو د یو بام او دوه هوا پسې

څو پورې به شیخ زمونږ په غرونو کې؟
ګرځي به په ښکارلا د عنقا پسې

څو به زمونږ روا ته ناروا وایي؟
څو به ناروا کړي خپل روا پسې

څو به خپلو بدو ته ښه وایي؟
څو به شیندي هره خوا بها پسې

بس دی دغه تهولې اعرابي کړنې
ځي دی نور له سیمې نه په شا پسې

هر چا لا له پخوا نه پېژندلی دی
دا ډاکو راغلی دی په غلا پسې

ای د انساني نړۍ دښمنه ژر
پورته به په دار شې په سزا پسې

بس دې چې وطن مو ټول ویجاړ شولو
ځه خپلې کیږدې خپلې بېدیا پسې

پرېږده مو آرام ته چې سا وباسو
نور له دې تاړاکه په ویسا پسې

ډېر ولا ارمان د سولې روغې ته
پرېښودل کورونه په سارا پسې

دوې لسیزې تېرې په جګړو کې شوې
دربیمه یې هم کاندي لا غړمبا پسې

وبا یللو سر په دغو لیارو کې
چا چې ځان سپارلو په ریښتیا پسې

وای چې د سولې لښکر درغی
دغه لښکر لا شي د جنګ بیا پسې

نه شته د دروغو او دوکو پایښت
هر څه رسوا کېږي په رسوا پسې

ښه ده چې په ډک زړونو له مینې شو
تل روان د ژوند ژواک په ښکلا پسې

ښه ده چې مو ژوند پیل شي خوږو باندې
دا د انساني ښکلې دنیا پسې

ښه ده چې وي سوله روغه جوړه تل
ښه ده چې وي دوه ورونه پخلا پسې

څو به په ترخو د ژوند اخته یو لا؟
څو به مو ژړا وي په ژړا پسې؟

څو به وي رتل، وهل، وژل هسې؟
څو به وي آزار، بېګار، کنځا پسې؟

بس دی نور د زړونو آزار مه اخله
وتره ښه ملا دې په دعا پسې

بس دي شړول، ويجاړول بس دی
بس دي نور وهل وژل د ستا پسې

کينه خپل "څاپي" ته د وروری په دود
واخله تري سبق د مينې لا پسې

بن، جرمني
20/4/2001

*څلوريزه:*

## اسوېلي

اسوېلي مې شولې ورېځې په هوا کې
پر بلې به د غليم د کور د پاسه
د ږليو او ګوليو وريا وکړي
ښه عبرت به شي د هريوه بې پاسه

بن، جرمني
25/7/2004

# برهان الدين رباني

ډېر خو يې زيرک هوښيار، زه به درته څه وايم؟
لا چې يې محيل مکار، زه به درته څه وايم؟

هر څه دې لوستلي دي، لا دې ښه زده کړي دي
فقه او فلسفه کې بار، زه به درته څه وايم؟

ما ګڼل عالم يې ته، شرعه کې قايم يې ته
لارې د شيطان په ليار، زه به درته څه وايم؟

جوړ دې پاټکونه کړل، نېغ دې ټوپکونه کړل
شوې چې د تاريخ لوټمار، زه به درته څه وايم؟

هاغه د شمال توپان، دغه بيا د تا بيان
شوې چې په دې رنګ غدار، زه به درته څه وايم؟

څه شوې هاغه لافې دې؟ لا هاغه ګزافې دې؟
هېر دې شولو مور او پلار، زه به درته څه وايم؟

بيا د سقاوۍ تکرار، ګټه وه د ښمن لره
ورک شو په کې ستا اتبار، زه به درته څه وايم؟

غټ پروفيسر وايې، ځان ته هر ميدان کې هم
نه کوې په حق اقرار، زه به درته څه وايم؟

هره کړنه هر کله، هاغسې بدل غواړي
هر يو زغ لري زغار، زه به درته څه وايم؟

هم يې په سياست کې پوه، هم په فراست کې پوه
اخلې د انسان آزار، زه به درته څه وايم؟

څوک چې نه شي کوم يو کار، هغه نه کړي هاغه کار
ته لګيا په داسې چار، زه به درته څه وايم؟

ما ګڼل کاروان سره، د واړه تر منزل به ځو
واوښتې په منځ د لیار، زه به درته څه وایم؟

عقل نه دې وخوړل، پوهې نه دې وڅښل
لا چې یې په خرونو شمار، زه به درته څه وایم؟

نه پټېږي پټما پېټ، ټولې پېټ پټانې ستا
هر څه دې هر ځای او څار، زه به درته څه وایم؟

اور دې چې بل کړی دی، سوځې به هم ته په کې
وایې د لمبو غرار، زه به درته څه وایم؟

هېر دې هاغه ورځې شوې، تا به چې جهاد ګاڼه
هېر دې شو هغه کردار، زه به درته څه وایم؟

هېر دې تقریرونه شول، هېر دې تاویلونه شول
تا به چې کول هزار، زه به درته څه وایم؟

هېر دې زمونږ وینې شوې، هېر دې زمونږ مینې شوې
هېر دې د شهید مزار، زه به درته څه وایم؟

هاغه شهیدان دې هېر، دغه یتیمان دې هېر
نه لرې له کونډو عار، زه به درته څه وایم؟

نن چې د دوستۍ په نوم کومه دښمني کوې
دی د دوه مخۍ اظهار، زه به درته څه وایم؟

تن کې دې غیرت نه شته، ځانته قهرمان وایې
شو ولس له تا فرار، زه به درته څه وایم؟

وګوره خپل ځان لره، نه شته کومه پته ستا
نه دې په هېڅ ځای قرار، زه به درته څه وایم؟

خوله خو یې درڅیرې کړه، ستوني کې مړۍ غټې

ساتې لا په ثېر د مار، زه به درته ثه وايم؟

دغو خيانتونو دې، لنډ هر يو واټن کړلو
ستا او د ثوکۍ او دار، زه به درته ثه وايم؟

حق دې ډېرکي غواړې، نه ګورې خپل شمېر لره
ته يو لږکی يې خوار، زه به درته ثه وايم؟

هاغه هم ناحقه دی، بيا چې واکمني غواړي
ځان ګڼي دُر، دُرار، زه به درته ثه وايم؟

پرېوتې مردارو کې، ژوند دې په مردارو شو
کړې لکه خنځير خرار، زه به درته ثه وايم؟

ورکه تاجيکواله شه، ستا او ستا له خټې نه
دا و د "ثاپي" آزار، زه به درته ثه وايم؟

بن، جرمني
**21/6/2001**

# ای زمانې!

راغی او لاړ کوم یو وار چې مې و
کوم د ځوانۍ ښکلی بهار چې مې و

خزان په خپلو څپو وځپلو
هاغه ګلبڼ ښه سمنسار چې مې و

دښمن د اور په لمبو وسېځلو
کوم یو د سر سیوری چنار چې مې و

ملا یې راماته کړه خو ټیټ نه شو سر
پر دواړو ولیو د جنګ بار چې مې و

د بېلتانه دېوانو وشلولو
د ملغلرو کوم یو هار چې مې و

لا یې د غاړې غړوندی کړ راته
یو څه اومه د ګوتو تار چې مې و

د خپو له دوړو مې هم ړوند شو غلیم
هاغه هجرت نه په تلوار چې مې و

بېلتونه هر کله ښېرا درته کړي
هاغه زړګی درنه آزار چې مې و

وایه! چې تا به ترېنه څه انګېرل
ملي اتل او جګړه مار چې مې و

د زمانې ملالې وزېږېدې
هاغه غلیم باندې ناتار چې مې و

بې له تراخو خولې ته مې رانغله څه
هاغه خوارۀ د خپل ديار چې مې وو

بيا به مې څوک پر ختيځ کوي ياد ؟
کوم د کندز او د مزار چې مې وو

څوک به مې ياد کړي پر انګورو باندې؟
هاغه د پلار نيکه خمار چې مې و

لا به مې کله په نصيب کې شي هم
هاغه خوارۀ انار چې مې وو

څوک به لا وواي سندرې په کې
هاغه سر مسته کندهار چې مې و

لا به هم ښکلې کړي ادب د پښتو
ګل د نارنج د ننګرهار چې مې و

بيا به ودان شي له بنسټه که نه؟
هاغه بغلان ټول شکرزار چې مې و

غليم له بيخه راته ونړاوه
کوم يو د پوال د ختو کار چې مې و

لغمانه وساته ښه برم د کاوون
هاغه د ژوند د اوبو سار چې مې و

هاغه سپين غر، هاغه شمشاد ولمانځه
ځلي د وياړ او افتخار چې مې وو

هاغه پامير او هندوكش ته سلام
هاغه بخدي هغه تخار چې مې و

هاغه چونغر د ګربتانو ځاله
هاغه له ښكليو نه فرخار چې مې و

اى زمانې ! پل به مې پاتې شي لا؟
له دې پاته چار او ناچار چې مې و

نګسي سترګو پېښورو لا زده كړل
د كابلۍ زركو رفتار چې مې و

هاغه منګي او منګوټي چې ثه شول؟
هغو كېډوب د زړه اسرار چې مې و

په ژوندانه را باندې تشې كړه ټول
كوم كنډولي پاتې انبار چې مې وو

وروسته تر مړينې مې قاضي به وي هم
ددې مهال يار او اغيار چې مې و

وايي به لا هم په ژړا ژړا كې
دښتې او غرونه لاله زار چې مې و

لاړ په ارمان كې د مرګي كومي ته
هاغه "ثاپی" دلته كوم يار چې مې و

خدايه ! جنت كې ورته ځاى وركړې ته
هاغه آشنا د تا په ليار چې مې و

بن، جرمني
**29/7/2001**

ځلوريزه:

# دوړه

د جنون د سارا دوړه، د مجنون د مخ ښيښه ده
د ښکلا د مينانو، د فطرت د دود رېښه ده
څه د واک خبره نه شته، څه د ځواک پوښتنه نه شته
د څرخې که کومه پره ده، د ځغاستونکي که لا پخښه ده

بن، جرمني
**2/9/2002**

# ترانه

جرګې د قامولۍ چې په هر ښار کې جوړوم
تقدير مې د تدبير وياړلي چار کې جوړوم

پرون چې د يو والي غږ راته له برې خوا نه
تصديق د هاغه غږ مې په دې وار کې جوړوم

څو ټول پښتون راټول په يو مرکز د قامولۍ شي
جرګې مې د نمرود د اور انګار کې جوړوم

د مينې ملغلرې د قامي وحدت په ګوتو
ليلا ته مې د غاړې ښکلي هار کې جوړوم

تاريخ دي راښودلي په سنګر د اتلولۍ
دفتر د نام او ننګ مې په دې ليار کې جوړوم

راټولې هرې خوا نه چې ريښې د ګرېوانه کړم
تښۍ مې په شلېدلي ګرېوان تار کې جوړم

پرون که پېښور و جرګه ځای مو د يو والي
ګانده به مې جرګه په کندهار کې جوړوم

چې ووسم سر لوړی ښه د سيمې پر سيالانو
شمله د پښتونوالي په دستار کې جوړوم

سوګند مې د "ثاپي" شه پر شهيدو تړمو اوښکو
ګودر د مستقبل مې په تګلار کې جوړم

بن، جرمني
**20/8/2001**

# ساندې

بیا راوواته نمرود د زمانې
ورسره دې ډېرې سترې خزانې

د اتوم په وسلو هر چا نه غښتلی
د جګړو لرې هم ډېرې سامانې

ملا تړلی عزرائیل د زمانې دی
غواړي بوري کاندي مېندې پښتنې

د بشر د حق په نوم چې هر څه وکړي
غوبړوي هر کله هر ننګ ترانې

چې وژل ویجاړول وکړي هر چېرې
لټوي هر چاته هر نګه بانې

په ظاهره د پومبې غوندې پوست ښکاري
په باطن دی کلک په خبر د پوندانې

د افغان په ملک یې ودانګل خو پام کړه
هلته ډېر دي ازمایلي زمانې

څه د دروغو د دوکو خبره نه ده
اوربدلي لا هر چا یې افسانې

چې مو مات شي ملي هوډ پر بمباریو
بیا روانې دي هغه رنګه کانې

هېڅوک نه شته چې د حق خبره وکړي
د نړۍ په خوله کې وختي دانې

ګوره څنګه پر پښتون باندې یې بار کړل
د عربو د جرمونو پیمانې

یوه ورځ به له باطله حق جدا شي
ما لیدلې دي تر منځه یې پانې

هره لوېشت کې مو د سیمې له ظالمه
پاتې شوې د ظلمونو کهانې

نن ډالرو راته ړوند دوست او اشنا کړ
چاته وښیم د ظلمونو نښانې؟

کڼه شوې ده نړۍ پر دواړو غوږو
چاته یوسم د ژړا و بیانې؟

څو هېواد لره مو سوله روغه راشي
ورکوو به د سرونو نذرانې

د "څاپي" له خولې چې کومې "ساندې" اورې
د یتیمو سترګو اوښکو دي دانې

بن، جرمني
**7/11/2001**

## څلوریزې

## څله؟

دغه هسک چې بیا غړمبېږي وايه څله؟
دا سيلۍ چې بيا لګېږي وايه څله؟

دلته هېچا ګل غوټۍ ليدلې نه ده
ګل له بېخه چې وچېږي وايه څله؟

## څله؟

غرونه غرونه دې غمونه پر ما راغلل
دومره غم او زه ناتوان ووايه څله؟

ما خو هېڅکله ګڼلې داسې نه وه
تا چې کړم دومره حيران ووايه څله؟

بن، جرمني
20/11/2001

## څله؟

بیا غړمبېږي دا اسمان ووايه څله؟
بيا شوڼېږي دا توپان ووايه څله؟

په دې سيمه خو سپرلی راغلی نه و
دا راغلی بيا خزان ووايه څله؟

دلته نه و څه شنيلي نه څه ګلونه
شيندې اور پر وچ ميدان ووايه څله؟

د بې وزلو پر کوډلو موده وشوه

د بمونو دی باران ووایه څله؟

کلی کوردی خالي شوی، افغان اوسي
آواره پر بیابان ووایه څله؟

وستلونه د جرګو شوې کندې کندې
لا واټونه شولو وران ووایه څله؟

که جومات و که روغتون که مېلمستون و
پاتې نه شولو ودان ووایه څله؟

غرونه غرونه پر افغان راغلل غمونه
دومره غم او دا ناتوان ووایه څله؟

د عربو پر جرمونو سزا ویني
هر وګړی د افغان ووایه څله؟

د چنګېز په یاسا، بیا هر څه تباه شول
که نبات و که حیوان ووایه څله؟

دا نړۍ خو ډېره پراخه ده هر چاته
چا چې تنګه کړه پر ځان ووایه څله؟

په ډېر قهر او غضب وحشیانه کې
ورانوې افغانستان ووایه څله؟

دغې پېښې د نړۍ پر هره څنډه
غورځنګي کړ هر ارمان ووایه څله؟

دا "څاپې" یوازې نه دی چې حیران دی
په حیرت دی ټول جهان ووایه څله؟

بن، جرمني
**30/11/2001**

# پردېسه لېونتوب

مينه لکه اور دې چې وي بَل په لوی ځنګل پسې
دا پتنګ زړګی مې لېونی شو د اوربل پسې

هلته اوربند نه شته، اور دی بَل لا هم په شتو د ژوند
هره څانګه، سته ده د غوټۍ او د بدل پسې

هره خوا به ګرځي په شلېدلیو ګرېوانونو کې
نه دي لېونيان په غم د ژوند شدېدل بدل پسې

نه شته په نصيب د لېونيانو د خندا متاع
شمېري لېونيان لا د غم غوټۍ ول په ول پسې

مينه لېونۍ ده، لېونيانو سره مينه کړي
چېرته هوښياران، چېرته له عقله شوټ او شل پسې

نه شي په دوکو او په چلونو خپلولی څوک
مينه بېګانه شي، که څوک چل وکړي په چل پسې

څه به له هوسا ژوند ده، خبري لېوني ته کړي
هاغي لېونۍ خو، پري يرغل کړی يرغل پسې

دا د لېوني د زړه د مينې له انګاره نن
هره خوا لمبې دي راختلې يو په بل پسې
مه وايه عاقله له هغې مبارزې نه څه
نه ورځي ياران نور د هغه رنګه تکل پسې

دا د لېونو د اتڼ څونې بيا د چا په ويار؟
هره خوا ته غورځي، که ځدراڼ دي که منګل پسې

ډېر د ژوند کلونه د طبيب په اسره تېر شول
رانغی ښاغلی، د رنځونو د درمل پسې

اور په اور وربېږي، څه پردېسه لېونتوب دی دا؟
تورې بورې څاري د "څاپي" د ژوند اجل پسې

بن، جرمني
**15/4/2002**

ځلوريزې

## پښتون

د پيــــــرۍ او مريـــــــدۍ پــــــه تـــــور مکتـــــب کـــــې
ښـــــه يـــــې زده کړلـــــــه د پرديـــــو غلامـــــــي
پــــــه تـــــن لـــــوخ پـــــه خېټــــه وږی لا تــــــر ځـــــو
وي بــــــه هـــــر کـــــس او نـــــاکس تـــــه ســـــلامي

بن، جرمني
**30/4/2002**

## د ژوندون خبره

ځـــــومره ده ســــتره ســــتا د ســــترګو د افـــســون خبـــره
لاړه رســـــوا شـــــوه پــــه دې چــــم کــــې د مجنـــون خبــــره

چـــا چــــې خــــوړلی ســــتا د ســـترګو د غمــــزو غــــشه ده
هغـــــه بـــــه ځــــه اوري محــــــشر کــــې د پــــاخون خبــــره

کـــوډو د ســـترګو هــــسې وځپـــــل وګـــــړي چــــې هـــــم
پـــــر ســـــر د دارګـــښـي لا هـــــم ښــــه همـــايون خبــــره

مينـــه زمينـــه ده هـــر انـــسان تـــه د کمــــال تـــر پـــوړه
مينـــې کـــې شـــته لا د ژونـــدون د هـــر مـــضمون خبــــره

مينـــه تـــا ده کـــړې د هـــر چـــا د ژونـــد ســـاړه اړخونـــه
مينـــې کـــې شـــته د تــــورو شـــپو د ســــباوون خبــــره

د بېلتانـــه خبـــرې به پـــرې مـــو تـــر ميانـــه وشـــوې
بـــس نـــورو وکـــړه د دوه زړونـــو پيوســـتون خبــــره

د مرګ نارې مو یو پر بله سره ووهلې
رائه ! چې وکړو له دې وروسته د ژوندون خبره

ثو به په پېښو کې وي پټې د رښتیاوو بڼې؟
ثو په تیارو کې به د شپو وي د پښتون خبره؟
ثو به تراخه د ژوندانه ستونه ترخه کړي زما ؟
ثو به له غېږې د لیلا وي د بېلتون خبره؟

ثو له شمشاده له پامیره مې لا سر نه شي دنګ
مه وایه ماته د سپین غر او د کاوون خبره

په تکفیرونو به شي مړه چېرې د پوهې ډیوه؟
چېرې به مړه شي په نړۍ د پوهنتون خبره؟

هاغو تور زړیو که وستل د جرګو ونړاوه
بل ئای کې لمانئم به د مینې د آزمون خبره

د بودایي ګروهې لا هم ډېر پاګودونه شته دي
په لمر خاته اورم بنګاک نه د رنګون خبره

هېره له ذهنه به د هېڅ یوه افغان نه، نه شي
هاغه تر منئ د اباسین او د جیحون خبره

ثومره چې وژني دې سیمې له وګړو نه ثوک
هومره هم لا پسې کږه شي د سمون خبره

تا د "ثاپي" پر زنګانه پرون ویلي وو ثه؟
ثنګه دې هېره د پرون شوه د زنګون خبره

بن، جرمني
3/7/2002

## اوښکې

چې د سترګو پر ښو مې څڅېدلې
هغه اوښکې مې بهېږي نن له پوزې

خدايه ! زه خو يې ساتنه کې ناکام شوم
ملغلرې تر کنجکو بېرته بوځې

بن، جرمني: 11/8/2002

## افغانستان

کلي وران شوي، ولس نه شته، کنډوالې پاتې دي
ځمکه ده شاړه، بڼ دی وچ، ړنګې ويالې پاتې دي

له هسکه اور دی ورېدلی، هر څه سوي دي ټول
نښې د ژوند خو، بس ايرې خورې ورې پاتې دي

کابل، افغانستان

# ګورشو د ژوندیو کور

زړه مې د کابل په لور، سترګې پېښور ته
تن مې له هیلو سره، بیا یې د غه لور ته

خیال شو تصور کې ډوب، نه چې ځپه راغلله
غواړي لېونتوب مې ځان، وغورځوي اور ته

هاغه د جنون سارا، ډکه له غباره شوه
نه چې بیا د ماغ د چا، و سپارلو شور ته

دوړې په هوا شولې، توره تیاره راغلله
برخه د بې وزلو ده، کلي ته او کور ته

کور، کلي، ښارونه مو، غرونه ځنګلونه مو
بیا په بې پروا توګه، وغورځېدل اور ته

ښځه له مېړه جدا، زوی جدا له پلاره هم
سپاري به سارا زامن، کله به بوري مور ته؟

بیا د زماني ظالم، ډېر په زور راغلی دی
ګورشو د ژوندیو کور، ژوند ننوت ګور ته

ډېرې بې حیاوې دي، دا د زماني سترګې
تور وایي و سپینو ته، سپین وایي و تور ته

د غو غلچکو غوغاو، وشلول خپلوی مزي
نه کا نور درناوی څوک لا چې ورور او خور ته

نه شته انساني مینه، وه چې زمونږ وینه کې
اوس د ښمن د سرښکاري، ورونه لا خپل ورور ته

څه به په ښتانه وي دا، څه به یې مېړانه؟

نه کا چې کاته په ځير، خپل د تاريخ غور ته

پربږدئ چې په خپله ځي، دا د زماني مجنون
پلی په خپل واک کې دی، نه سپاري ځان سپور ته

زه مې مينه لمانځمه، ته وايه چې څه وايې؟
نه يم د تهران په لور، نه چېرې لاهور ته

دا د "څاپي" غاړه خو، کلکه له پولاده ده
خوشې به ځان ستړی کړې، نه کړېږي زور ته

بن، جرمني
**29/8/2002**

# په ګوندۍ توګه

هر څه به د عيش مومي، وي چې په رندۍ توګه
مري به د توبو زاهد ، خوشې په زندۍ توګه

ستا د توروربل په لور، زړه او سترګې لا چې هم
خيال د تصور سره، ځي په ګړندۍ توګه

دوړې را روانې دي، ښکاري د جنون سارا
ډکه بربوکو نه شوه، بيا په ښه توندۍ توګه

هره شېبه شمار سره، تګ د تن په لور لري
هسې مې د ساه په څېر، غم دی په ګوندۍ توګه

سپین کاغذ به تور کړمه، وینه مې رګونو کې
اورد ترانو واخیست، راګدی په هندۍ توګه

رنګ یمه ګلپاڼو نه، ستا په شبنمي خاطر
وږم سره الوزم، لمر ته سربښندۍ توګه

ساتمه په خیال کې چې، لا په هر مهال کې مې
ستا د نامه هر ټکی، ښه په اړوندۍ توګه

شمعې ته پتنګ راځي، ګل لره بلبلې لا
ما لره ستا مینه هم، راغله غړوندۍ توګه

مه وایه له عقله څه، واک د لېونیانو دی
غاړه کې ځنځیر هسې، ساته په بندۍ توګه

نوم به د لندن اخلو، خیال به د مسکو ساتو
داسې مو د ژوند رموز، شو په بې خوندۍ توګه

غواړمه د مینې ژوند، ژوند په میینانو کې
اوسې مې په زړه کې لا، مینه په ژوندۍ توګه

څو به ستا په وړاندې هم، داسې په وحشت "څاپی"
اوښکې د ژړا څاخي، ښه په بولندۍ توګه

بن، جرمني
**2/9/2002**

# ناپوهي

درد او غم چې وي د ژوند د ونې سره
خوښې څه غواړې له داسې ونې بره؟

د زمري له خولې مرۍ لاس ته راوړل دي
پنځېدلی د غه ژوند دی جګړه وره

د ښکاري د دام د لومې بس ستایل دي
ګټه نه شته نور له ټایمز له آبزوره

تن او خېټه ده موخه د ساتنې
نور څه مه پوښته له خپله مهاجره

که پوهېږې له کړکېښنه ددې سیمې
ساده مه بوله بې پرې بهادره !

دغه دود دی منل شوی په هر ځای کې
قربانېږي زر له یو او یو له زره

د ازرښت په نوم نوښت دی دنیا ومنو
پام د لاس تله دې نه شي مروره

په بمونو چې دې رنګ په رنګ بمبارد کړ
اوس څه غواړې له دې ملکه کنډ کپره؟

چې وربشې خورې وري به ښه درانه وړې
بې له دې نه راته نه یې په کار خره !

پوهه هر کله ده غوره خدایه ! ورک کړې
ناپوهي به دا بله مو له ټبره

څو به غشي د تورونو په ما اوري؟
څو به یم د غم لیندۍ ته برابره؟

ثو به لا پسې پردېس د بل هېواد يم؟
ثو به هرې خوا ته ګورمه اوتره؟

ثو به يمه بې پروا له ښو او بدو؟
ثو به خورمه ګوزارونه سر په سره؟

ددې غم چاره به هله "ثاپی" وشي
په پښتو سره چې شي ښه متهه وره !

چې توفيق د اتفاق وي ثه غم نه شته
لاندې باندې، ښکته پورته، کوزاو بره

بن، جرمني
3/10/2002

ثلوريزې

## چې وار زما شو

چا اړولي پر سر جامونه
چاته دي ايښي ډک ډک خمونه
چې وار زما شو، له بده مرغه
طالب رامات کړل، ټول بوتلونه

## هجرت

ډېره ده ګرانه، د هجرت د پردېسۍ شپه
لا هم ترخه ده، د بېلتون د بې وسۍ شپه
خدایه ! رامه وړې، پر هېڅ بانډې
د یار د مینې، د مایوسۍ شپه

بن، جرمني

## څپېره

ښکلیو کې ښکلا شوه په ځلا چې نن
غم هم په څپو شو هره خوا چې نن
وبه خوري څپېړه د چوپتیا پر مخ
ښکلې د ښکلا ده، په خندا چې نن

## ګونځونه

ستا د وچولي پر ګونځونو اوتو کېږي
زما د پوهې د کمیس هره تړانګه
څه به خیروي د هغه سړي په کور کې
چې یې نه وي د ښکېنو کومه وړانګه

بن، جرمني
17/1/2003

# دعا !

دا پاتې ژوند وایم آرام کې دې شه
تل د خوښۍ ښاک په جام کې دې شه

په تن روغتیا په ژوند نېکمرغه شېبې
بری لا هم په هر اقدام کې دې شه

د زغره والو مشینګنو نه ډک
د دښمن هر لښکر په دام کې دې شه

دنیا ومنئ د ښه اغېز مهال کې
د لورو غرو غرڅان په رام کې دې ښه

د ناکامیو ناهیلیو شېبې
بدل په ښو هیلو د کام کې دې شه

د تورې شپې چې کوم د پای تکی دی
د سباوون ستوری په بام کې دې شه

هغه چې ته ورته ژغورنه وایې
د هر ژوندي واک په انعام کې دې شه
د نړیوالو د کاروان سره سم
دا زمونږ کور کلی په پام کې دې شه

سوله او روغه، رغونه مو بیا
د لاس په کار، د خولې کلام کې دې شه

که د سیالانو سره سیال شولې ته
ښه شاباسی په ننګ او نام کې دې شه

چې په سلام شالوم درنښت دي ومونږ
غواړم درناوی هم رام رام کې دې شه

چې د پښتون ولس یو والی غواړي
ښه برکت په هر پیغام کې دې شه

سړی هغه دی چې یې خلک ومني
منښت د خلکو په دوام کې دې شه

د جګړه مارو ظالمانو پر ځای
عدل او انصاف قایم په قام کې دې شه

د مبارز "څاپي" دعا ده ربه
ښه اغېزه په هر کلام کې دې شه

بن، جرمني
**1/11/2002**

## نه‌لمانځمه

لاړلې زړه نه زما ، نور به دې نه لمانځمه
هېره کړه مینه مې تا ، نور به دې نه لمانځمه

لاړلې او هېره دې شوه، مینه سپېڅلې زما
وه چې د ښکلا و ښکلا ، نور به دې نه لمانځمه

خیال کې دې چې نه راځمه، خیال ته به مې نه راځې
دا مې ده د ژوند مدعا ، نور به دې نه لمانځمه

زړه دې راته ژوبل کړلو ، او سومه په اور د کرکې
مه راځه مې مخې ته بیا ، نور به دې نه لمانځمه

تا خو په څو ځلې له ما ، خپل مخ اړولی و

واوښتې دا ځل له ما ، نور به دې نه لمانځمه

ما ګڼل څو شپې به سره، خوا په خوا کې ووسو
لاړې لکه ګرد په هوا ، نور به دې نه لمانځمه

څومره چې مې وستايلې، څومره چې مې ولمانځلې
هومره دې کړم سپک د هر چا ، نور به دې نه لمانځمه

يو عمر دوستي وه سره، يو عمر د ژوند خبرې
کړله دې ټولو ته شا ، نور به دې نه لمانځمه

ستا د رنښت هسک له لوري، مخه دا ندونو مې هم
واوښته دا ځل بله خوا ، نور به دې نه لمانځمه

اوس که په زرګونو ځلې، کوډې په کوډګروباندې
وکوې هر رنګ پر ما ، نور به دې نه لمانځمه

شې که د هيلو انګازه، يا که د ژغورنې اسره
لا که شې په څېر د بودا ، نور به دې نه لمانځمه

هوډ د پښتونوالې نه مې، جوړ شو د ننګونو سنګر
نه ماتېږي هېڅکله دا ، نور به دې نه لمانځمه

مينه د رښتينو سره، کار د رښتينوالو دی
تاوکړه دوکه په رښتيا ، نور به دې نه لمانځمه

چول د برېوکيو ته دې، پرېښودلم زه "څاپی"
زه او دغه وچه بيديا ، نور به دې نه لمانځمه

بن، جرمني
9/10/2003

# د زمانې ازمېښت

ستړګو مې که هر کله له هره چا ژړلي دي
خولې کې مې که هر کله هم کلک سوکان خوړلي دي

ما د زمانې هر رنګ سیلیو مخ ډب کړی دی
ما ته غلیمانو هم منګولې تل مروړلې دي

زه یم چې هر کله د ظالم پر ضد ولاړ یمه
زه یم چې هر کله توپانونه ودرېدلي دي

ما د خپلې سیمې سمندر په توپانونو کې
ډېرې بېړۍ هم لکه د نوح په څېر ژغورلې دي

ما له تیندکونو غورځنګونو ښه زده کړي دي
زه یم چې له هره چا مې لوبې تل ګټلې دي

ما د وچو غرونو وچ ډاګونو ژوند منلی دی
زه یم چې بچیان مې سرښندنو ته روزلي دي

چا راته د دین چا د مذهب خبرې وکړلې
چا راته له پلاره له نیکونو هم ویلي دي

څوک راته اریان څوک د یهودو اولاد وایي
ډېرو په هر ځای کې له پښتو نه مې ستایلي دي

ډېرې مې د مینې ترانې د برم سندرې لا
هر کله هر ځای کې او هر چا هم اورېدلي دي

کله هم د ژوند په تورو شپو او بدو ورځو کې
ډېر د غم دیوان مې زولنو کې هم تړلي دي

ما باندې لا هر کله هر چا هم بهانو سره

ستر ستر توغندي د مرګاني ډېر ورولي دي

زه يم لا ژوندی د تاريخ هر يو پړاوونو کې
ماته دښمنانو په درناوي هم کتلي دي

ډېر د بری لياري لا د ژوند په کړلېچونو کې
ماته د پښتو پښتونولۍ قانون ښودلی دی

ما په دغې لياري کې تر اوسه د بری سره
ډېر ښه ازمېښتونه د تاريخ پر مخ ليکلي دي

کله مې خندلي په شېبو د ژوند خوښيو کې
کله مې د غم په هر ګړۍ کې هم ژړلي دي

مه وايه جانانه ! چې ګرېوان دې ولې څيرې دی؟
ما خو ګرېوانونه ستا په مينه کې څيرلي دي

مه وايه چې ولې پښې يبلې او سپېره ګرځې؟
دا مې ستا په مينه کې له څېرمې هم منلي دي

مه وايه چې څنګه هم نالوستی پاتې شوی يې؟
دې ستم هر کله ولسونه ډېر ځپلي دي

مه وايه په تېښته پر تا ټوله نړۍ ډکه شوه؟
دغسې حالاتو ولسونه تل پاشلي دي

مه وايه غليم خو پر تا لوبې رنګ په رنګ وکړې؟
داسې پېښې ډېرې پر ما هر کله راغلې دي

زه د زماني په ازمېښتونو کې لا پروت يمه
ماته د "ځاپي" ترانو هر څه هم سپارلي دي

بن، جرمني
**20/10/2003**

*افقي او عمودي څلوريزه:*

## ژړا

| | | |
|---|---|---|
| د ژوند | په غم | يم سرګردان |
| په درد | اخته يم | سر په بيابان |
| په چيغو | ژاړم | خوار او حيران |
| ژاړم | اوتريم | څيرې ګرېوان |

بن، جرمني
**20/10/2003**

## د لمر څرک

سپوږمـــۍ خـــــانـــــدي ســـــتوري نــاڅــــــي
د تــــورتــــم شــــېــــبــــو پـــــــر غـــــــاړو
چــې د شــــــپــو جــــــــنــــازې درومــــــــــــي
د لـــمـــر څــــــــرک ســــــر پـــــــــــــــــه ولاړو

| | |
|---|---|
| پــه رنګونــو د لمــر وړانګـو | د نــړۍ شــونډې انګېــري |
| هــره ورځ هــره شــېبه ژونــد | پــه رنګونــو کــې نخښــېږي |

❋ ❋ ❋

| | |
|---|---|
| د پـنځ ښـې ښـکلې مـسکا تـه | فلـسفې پـه سـوچ کـې تللـی |
| د رازونـــو پـــه خېږلـــو | دماغونـــه ســـتړې شـــوي |

❋ ❋ ❋

| | |
|---|---|
| بیا به وړانګې راخورې شي | د ښــکلا لــه پراخــه هــسکه |
| بیا به ګل پـه خندا شنه کړي | د ســحر د ګرېــوان وښــکه |

❋ ❋ ❋

| | |
|---|---|
| بیا بـه ژونـد پـر سیمه راشي | شـــنیلي بـــه وتـــو کېږي |
| وږمـه ییـز بـه چاپېریـال شـي | ګــل غــوټۍ بــه وخنــد ېږي |

❋ ❋ ❋

| | |
|---|---|
| د لمـر ورځـو پـه کـاروان کـې | بدرګــه بــه زېــری راشــي |
| نېکمرغـۍ د ژونـد اسرې تـه | وریـن تنـدی بـه د هـر چـا شـي |

❋ ❋ ❋

| | |
|---|---|
| بیــا بــه ســوله روغــه راشــي | زمـونږ پـر سـیمه پـر هېـواد |
| بیا به ورونو غوندې یو ځای | پـــر تـــاټوبي شـــو آبـــاد |

❋ ❋ ❋

| | |
|---|---|
| ددې زېـــري د راوړونکـــي | ســـتا مینـــه بـــه کـــوو تـــل |
| درودونـــه بـــه پـــرې وایـــو | لمانځنـــه بـــه کـــوو تـــل |

❋ ❋ ❋

بن جرمني

**1/11/2003**

❋ ❋ ❋

# راشه چې پخلا شو

څو به د سیلۍ کړي زما د ژوند متاع پر باد باد
خاوره به مې شندي هرې خوا ته له بنیاد باد

زه لوګی لوګی ستا په مجمر د سپېلني په څېر
ته لګیا پوکې کوې د ظلم او د بېداد باد

زه د خپلې سیمې د تاریخ د سر د تاج ویاړ
زه به دعاګانو د هر چا کې یم هم یاد باد

تا که د خځلې غوندې سپک کړمه عجب نه دی
الوځوي ځمکې نه هوا ته هم پولاد باد

ما له مرورو شونډو ستا نه پېرزو کړې وه
ګونډې د ګلونو په ورېمو به مې کړي ښاد باد

کله نه چې لګي ستا له مهره له غضبه هم
چېرته ودانې چاته پرېښوده آباد باد

نه وای که ورېمې د نارنج ګل او د نرګس په کې
وو به سوځونکي همېشه جلال آباد باد
ما په ژوندانه کې ټول امرونه ستا منلي دي
مه وایه چې نه راځي له تا د اعتماد باد

ما مې خپلې وینې د رودونو سېلابونه کړل
تا ته په وړیا کې شو ترلاس پښتون آباد باد

ګورو به چې څه کوي لولې د زمانې دلته
وا چاوه په غاړه ورته هار د انقیاد باد

مه ګڼه خیر خوا د زمانې دنیا ومنئ په دود
څوک چې په دماغ کې خپل لري د استبداد باد

بندې کړه د بلوسې د سيلۍ څپې دې بندې کړه
پرېږده چې يوازې پر ما ولګې آزاد باد

وخاته پر لوړو د لوی خدای د ارادو سره
خپور به هرې خوا ته شي د مينې د زوزاد باد

راشه چې پخلا شو ددې ژوند شېبې را لنډې دي
نه کړي کومه ګټه پس له مرګه د فرياد باد

ښه ده پخلاينه د دوه زړونو مرورو تل
داسې په فطرت کې د "څاپي" ده د نژاد باد

بن، جرمني
**11/11/2003**

## د سياست لوبغاړي

سر مې مات شو ستا په کانو، خون يې تویلاړ
ورسره مې افغاني ښايسته خوی لاړ

بيا له هرې کورنۍ نه، ستا له بدو
لوخ لغړه که ماشوم و، او که لوی لاړ

پچه وخته په نوم، د بې وزلانو
مور او پلار په ژړا پاتې، ورنه زوی لاړ

مينې زړه کې د خدای مينه لټوله
خيال له وېرې نه، بهر په جستجوی لاړ

په حیرت د زماني له بدو چارو
په ناڅاپه مې له سره هر یو موی لاړ

د دې چارې به چاره له چا نه غواړم؟
هر یو غړی مې د کور چې په هر سوی لاړ

لا د ننه کور ته نه و ننوتی
د عمرونو مسافر مې بیا له کوی لاړ

چا چې چور او چپاول او وژلې وکړې
د ولس واک بیا په لاس کې د هغوی لاړ
د زړګونو انسانانو مې قاتل هم
وایه بیا هغه کابل ته په کوم روی لاړ؟

د وحشت د خاوندانو چې وار راغی
شرافت د ټوپکیانو په ولجوی لاړ

د ملګرو ملتونو خو تش نوم دی
په ریښتیا کې هر استازی هم د دوی لاړ

که د کیڼ و که د ښي و، چې خوږمن و
له هېواده مو په شور او په های هوی لاړ

ستا د عطرو له دکانه، زما په چم کې
په بدل د ګل د وږم ګنده بوی لاړ

په ناحقه به وي غورځي د طنین
له انګرېزه که دې خوا ته کوم یو ګوی لاړ

عاقبت به ارتاوېږي و ګړنګ ته
څوک چې دلته د دښمن په تګ او پوی لاړ

"ځاپیه" ستاسو د سیاست دغه لوبغاړي
د ماشوم غوندې هر یو په پټاتوی لاړ

بن، جرمني
17/12/2003

# ژوند

ژوند هر ګوره یوه ساه ده    دغه ساه د ژوند نڅا ده
څو نڅېږي هومره پایي    په دې شان د ژوند بقا ده
نور څه نه مومې په تن کې    یا ژړا ده یا خندا ده
په دې دواړو کې به اوسي    که تیاره ده که رڼا ده
که خوښي ده او که غم دی    څه تقدیر دی که قضا ده
نور څه نشته په دا منځ کې    یا ثواب دی یا ګناه ده
خپلو کړنو نه به وینې    که جزا ده که سزا ده
له رنګونو نه ده جوړه    که دا ځمکه که فضا ده
بس د پل د پاسه پل دی    که دا خاوره که هوا ده
پاتې کېږي به و بل ته    که زما ده که د تا ده
څه چې وایي هغه اوري    که دروغ دي که رښتیا ده
دغه ژوند کله هنداره    مخامخ او شا په شا ده
په هنداره کې مخ ګوري    چې چټله که صفا ده
په دې دوو کې واکمن یي    که روا که ناروا ده
د ژوند پای سره به مخ شي    که دا نن دی که سبا ده
له "څاپي" نه که یې اورې    بس یوه د خولې دعا ده
ښه کوه چې ښه ښکاره شې    په ښېګڼه کې ښکلا ده
یارانه کې تل پېښېږي    که وفا ده که جفا ده

نور دې خوښه چې څه غواړې
د ژوند مخه درته وا ده

بن، جرمني 25/12/2003

ځلوريزه:

# ازمېښت

يو ښه ازمېښت و د مهال خو په لاسونو د بل
ډېرې ځېرې شولې رسوا چې وې په دروغو پټې

هاغه د مينې د خدمت د صداقت مدعيان
په حقيقت کې د خيانت او دښمنۍ وې ستې

بن، جرمني 25/5/2004

# خيال او اميد

چې نه رسي انسان ورته، هغه دي دا دوه څيزه
د خيال د ورشو ځنډې او سراب د اميدونو

دا ژوند خو د هر ژوي دی هر ځای هره شېبه کې
روان په دغو ليارو او په داسې بهيرونو

بن، جرمني 2/6/2004

# ترانه

دا مو ده ځمکه، دا مو اسمان دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی
دا پر مونږ ګران، افغانستان دی

دلته اوسېږو، دلته وسېږو
دلته په پر مینه، ښه هوسېږو
دلته مو غم دی، دلته ښادي ده
دلته هر کار ته، ډېر ښه هڅېږو
دلته به مرو هم، دا مو ارمان دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی

دلته مو مور وه، دلته مو پلار و
دلته آباد وو، دلته مو کار و
دلته نیکونه، دلته نیاګاني
دلته مو هر څه، ښه اعتبار و
دلته به اوسو، دا مو مکان دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی

دا مو اوبه دي، دا مو هوا ده
دلته مو کور دی، دا مو فضا ده
دا مو ده خاوره، دا مو بادونه
دا مو ده سیمه، دا مو ښکلا ده
دا ټول ټبر مو، دلته ودان دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی

دا مو کېږدۍ ده، دا مو اورونه
دا ورشوګاني، دا ځنګلونه
دا مو څر ځای دی، د اوړي ژمي

دا مو دي دښتې، دا مو دي غرونه
دا مو دي واورې، دا مو باران دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی

دا مو دی لمر، دا مو سپوږمۍ ده
دا مو دي ستوري، دا مو بلۍ ده
دا مو انګړ دی، له پرورو ډکه
دا مو ده مېنه، دا مو ګلۍ ده
دلته مېشته يو، دا مو ايمان دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی

دا هديره ده، دا مو وستل دی
دا مو حجره ده، دا مو هوټل دی
دا مو مشران دي، دا مو کشران دي
دلته هر کار مو، په مينه مل دی
د ژوندانه مو، تاريخ روښان دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی

دا مو نغری دی، له اوره ډکه
دا مو دی ځلی، ښه اسمان ځکه
دا مو جومات دی، د کلي منځ کې
دا مو لمونځونه، له عيبه سپکه

دا مبارز "ځاپی" ورته روان دی
دا مو نړۍ ده، دا مو جهان دی
دا پر مونږ ګران، افغانستان دی

بن، جرمني: **10/7/2004**

# اغزن خوبونه

بېګاه مې شپه وه پر اغزنو، لېونو خوبونو
یم تر سهاره کړولی، د غربت غمونو

چې به مې خوب راغی د سترګو د بڼو څوکو ته
لکه ګربت به په هوا کړم، د غرور موجونو

د خیال څپو کې به تر لوړو نا پیدا سیمو ته
ور الوتمه پر رنګینو، زرزري وزرونو

کله به هم لکه ګولۍ شومه ښېوه را لاندې
که مې کتل وم په لګیا، پر چوند خي ټوپونو

د اند پښنو سره یو ځای به د خیالونو څپو
هم به په دښتو کې کړم پلی، هم پر لوړو غرونو

شبېه ادم، شبېه ملک، شبېه ابلیس به شومه
د ناستې ځای به مې لمبه کړ، په دا درې خوبونو

کله ګیدړ، کله لېوه، کله زمری به ومه
کله د سپي غوندې هر څوک به مې داړل داړونو

کله باچا، کله ګدا، کله مریی به شومه
کله اسیر، کلک په ځنځیر، رنګ په هر رنګ تورونو

کله حاکم، کله محکوم، کله د دواړو تر منځ
هسې هر چا به یادولم په هر رنګ نومونو

کله قاتل، کله مقتول، کله وارث د دواړو
کله قاضي به وم عادل، سر په فتوی حکمونو

کله به هم د خپل وطن په هوا والوتمه
وم به هوا کې په هر رنګه غورځنګي چورتونو

چې به پر سر د خپلو ورانو کلیو ورسېدم
شوم به په یاد کې د هجرت د پېښور کمپونو

کله به موړوم د جهاد پر بسپنیزو پیسو
کله به وړی وم اخته، په درد او غم رنځونو

کله به خوښ وم له مشرانو د جهاده خو بیا
زړه به مې تور شو د سیاست له تور مخیز کارونو

کله به وم لکه د بوش او د شارون جګړه مار
غره پر شوبلو، توغندیو، اتومي بمونو

ټولې نړۍ ته به مې ورکړل چېلنجونه هر رنګ
د ژوبلې، وژلې، د ورانۍ، د رنګ په رنګ ګامونو

کله به ځان مې اسامه غوندې نامتو لیدلو
په پټاپټو، یرغلیزو، توپاني سوچونو

کله به وم زه د مسکو د کرملن مانۍ کې
که مې کتل وم به په خپلو کنډوالو کورونو

کله به هم د واشنګټن سپینه مانۍ کې ومه
ګرده نړۍ به مې د باو لاندې نیول امرونو

په سپینه خوله په چینګو داړو د ګیدړو غوندې
وم به په منډه هره خوا ته په هر رنګ چلونو

لکه ابلیس به وم غره پر دښمنۍ د انسان
په نړۍ وال جاسوسۍ او انګرېزي چمونو

په دغو هسې رنګا رنګه مړ خوبجن خوبونو

له درد او غم، له رنځه ډکو اندېښنو خيالونو

شپه مې سبا شوله د لمر په تمه پاڅېدمه
لمر را ونه خاته هر ګوره په دې زمونږ بامونو

ورځ په تيارو کې شوله تېره، بيا د شپې له لوري
دا دی روان يم په سترېو د وحشت ګامونو

ده وېروونکې زما د خوب د ويښتياوو نړۍ
چاته وښايمه مخ پټ د وېرې ډک رازونو

هغه هوښيار دی چې د خپل د ورور پر وينو باندې
توره تېره کړي هر څه خپل کړي، د پيسو مالونو

د منصبونو د رتبو په هوس ورور وژني
بمونه واچوي هر رنګ پر هر کلي، ښارونو

دا مبارز "څاپی" له چا ځنې پوښتنه وکړي
چې په هېواد کې لمبې خېژي د جګړو اورونو

بن، جرمني: **22/6/2004**

# کباړ

چې مو نیت شو د یو بل په لوري شاړ
هره خوا شوه د کر ځمکه لکه کاړ

ننګیالي مو د وطن سر په کفن شول
زماني کړو د بې ننګو خلکو پاړ

مساپر مو د عمرونو انتظار
په کوم لیاره چې راغلي وو هم لاړ

د وفا غونډه مې هېڅ نه ده لیدلې
د وعدو د غونډو جوړ د بېړوباړ

په وعده کې به وفا و برېښي کله؟
ددې غونډې که څوک ناست دی که ولاړ

په عمل کې چې څوک نه شي ښکارولی
دغه ټکی د وفا دی ولې کړاړ؟

هر وګړی د خپل چم چې چېرته وینم
په زرګونو دي غمونو کې لتاړ

یو لښکر د بېلتانه د غم راغلی
مخامخ دی د مېن پر کوري بې باړ

کوم امید مې چې لاره د ژوند لوېږي
د دښمن د ستر آفت په اور کې لاړ

هره تیره هر کمر کې ددې غرونو
زماني ده نښه پرېښې د هر تاړ

د ظالم له زور او ظلمه او ناتاره
هر وګړی د افغان شو له ساړ

د "څاپي" د ژوند متاع يې تار په تار کړه
لا هم پلوري په هر چا لکه کباړ

بن، جرمني: **10/8/2004**

***

# څلورمه برخه

## متفرقه ليکونه

## پرانستی لیک:

*بن، جرمني د 2001 کال د سپتمبر میاشت*

## *ښاغلي جمهور رئيس بوش*

کله چې په افغانستان کې طالبان په واک کې راغلل، داسې وانګېرل شوه، چې: CIA او ISI د هغوی ملاتړي دي.

د افغانستان ډېرکي ولس "پښتنو " د دغې انګېرنې په مخ و پتېيله، چې د طالبانو ملاتړ وکړي، په دې کار کې دوه دلیله موجود وو:

1- د امریکې د ولس سره ښه دوستي او نېکه وروګلوي.

2- د طالبانو سره جګړه به د ISI سره جګړه وي. د ISI سره جګړه به د CIA سره جګړه وي او د CIA سره جګړه به د امریکې د متحده ایالاتو د ولس سره جګړه وي.

نو له دې امله افغان ولس د طالبانو په ملاتړ ودرېد او په دې لیاره کې یې په سلګونو زره انساني قرباني هم ورکړه.

خو زموږ د ولس دغه د دوستۍ او وروګلوۍ ښه نیت او عالي انساني احساسات دادی تاسو ښاغلی بوش د سپتمبر د یوولسمې نېټې د خواشینوونکې پېښې له امله، چې زموږ هر افغان هم پرې زښت زیات خواشینی شوی دی، په دښمنۍ واړوله او په خپل ستر پوځي ځواک مو افغانستان او افغان ولس د بمباریو او تباهیو تر تهدید لاندې ونیولو. هغه هم د اسامه بن لادن په بهانه.

زموږ هیله داده چې: که چېرې په رښتیا سره تاسې ښاغلی بوش غواړئ، چې عدالت تامین او تطبیق شي، لومړی باید خپل د زنې لاندې د CIA هغه کسان، چې په دې تېرو درې لسیزو کې یې په افغانستان کې د خپلو غلطو پلانونو او پروژو په پلي کولو سره د افغان ولس په نزد ګناهګاره دي محاکمه او په سزا ورسوئ. په دوهم پړاو کې د پاکستان ISI او ورپسې بیا د طالبانو غوړونه ومنبئ.

د ستا CIA او د پاکستان ISI جمع د روسانو KGB هر یوه په خپل وار زموږ هېواد او ولس سره دښمني کړې ده. KGB د خپلو شوروي پوځونو جمع افغاني کمونستانو زموږ په هېواد یرغل وکړ. موږ یې ووژلو، ورټلو او زموږ هېواد یې د لس کلنې جګړې په ترڅ کې رنګ او د خاورو سره خاورې کړ.

CIA او ISI زموږ په هېواد د مجاهدینو په نامه یوه کوچنۍ سکتاریستي ډله واکمنه کړله، د کورنۍ جګړې اور یې بَل کړ، د هېواد اقتصادي، فرهنګي او ټولنیز بنسټونه یې ونړول. پر کنډوالو یې بیا طالبان راوستل. د طالبانو د ډلې په واکمنولو سره زموږ پر هېواد او پر ولس د سکتاریستي ډلې توره وژونکې او ورانونکې څپه لړې وغورځول شوه. یو څه امنیت، یو څه هیلې او یو څه رڼایي وځلېده؛ خو په خواشینۍ سره دغه ټولې هیلې د اسلام په نامه، د عربو فرهنګي یلغار په توره پرده کې ونغښتلې او په اور کې وسوځولې شوې.

CIA او ISI په خپلو صادرو کړیو مجاهدینو او طالبانو سره نه یوازې، چې زموږ اقتصادي، کلتوري او ټولنیزه بنسټونه ونړول، چې زموږ د ټولنې ډېر کلک فرهنګي بنسټ (پښتونولي) ته یې هم

مرګونی ګوزار ورکړ.

د CIA او ISI ددغو ظلمونو د پاسه اوس تاسو ښاغلی بوش هم غواړئ په خپلو بمونو او راکټونو زموږ د ولس د مېلمه پالنې اداب او کلچر نابود کړئ.

که اسامه تروریست وي هغه؛ خو عرب دی نه افغان. که اسامه تروریست شوی وي، هغه به د عربو د داعيې له مخې وي، نه د افغاني داعيي پر بنسټ کوم، چې نوموړي د CIA او ISI له خوا د طالبانو د زېږېدو نه لا ډېره موده دمخه په افغانستان کې زموږ د ولس پر ولیو سپور کړل شوی و.

خدای(ج) مه کړه که تاسې هم پر افغانستان نظامي حمله وکړئ او افغانان ووژنئ په دې صورت کې به د افغان ولس په نزد تاسې ښاغلی بوش، برېژنیو، ISI, CIA, KGB مجاهدین، طالبان او بن لادن به په یوه قطار کې راشئ او د افغان ولس د قاتلانو په حیث به تاریخ ته وپېژندل شئ.

له دې کبله ددې لیک په وسیله له تاسو ښاغلي بوش نه غواړو، چې د افغانستان او افغان ولس د تباهۍ په ګناه کې تر هغه مهاله پورې، چې د CIA او ISI ګناهګاره واکمنان نه وي محاکمه او مجازات کړي، پر افغانستان باندې خپل بمونه مه غورزوئ. که چېرې تاسو د ګناهګارو وګړو د مجازات څخه دمخه پر افغانستان بمونه وغورځول، افغان ولس به پر تاسو ښاغلي بوش او د CIA د ګناهګارو وګړو پر ضد د ستاسو د هېواد په عالي محکمه کې دعوی وړاندې او تاسو به محاکمې ته کش کړي.

د اسامه بن لادن د لانجې د حل لپاره زموږ مشوره تاسو ته داده، چې د امریکې د ولس د درې ادیانو یعنې یهودي، مسیحي او مسلمانو ټولنو دیني درې کسیزه هیئت دې د طالبانو سره د بن لادن لانجه د خبرو له لارې حل کړي. موږ دغه د حل لیاره ځکه غوره ګڼو، چې طالبان ځانونه دیني ډله ګڼي، چې د دیني ډلې په ژبه او منطق دیني ډله پوهېږي، نه سیاسي ډلې ټپلې.

په دغه لیاره کې ستاسو پاملرنه ژر تر ژره را اړول غواړو، څو د یو بل ستر مصیبت له مخه مخنیوی وشي.

په خورا درناوي

خان مبارز "څاپی".

❋ ❋ ❋

## د قبايلي مېرمنو د خير ښېګڼو ټولنې مشرې درنې
## خور ډاکټر بېګم جان !

*سلام او ښې چارې !*

ماته د پوست له لیارې د نوي ژوند خپرونې دوې ګڼې راورسېدلې، ومې لوستلې او ستاسو هلې ځلې مې د قبايلي مېرمنو د چارو په هکله د ستايلو وړ وميندلې.
رېښتيا، چې قبايلو ته او بيا قبايلي مېرمنو د ژوند هر اړخيزو چارو ته تر اوسه پورې هېچا پاملرنه نه ده کړې. زما هيله داده:
لکه څرنګه، چې ستاسو د خپرونې له اهدافو څخه ښکاري په هماغه توګه په دې لياره کې به لا پسې اغېزمن ګامونه پورته شي. په دې هکله لکه څنګه، چې تاسو هم انګېرلې ده د پښتني سيمې او بالخاصه د قبايلو د مشرانو، روحانينو، سياسي ګوندونو، فرهنګي کړيو، پوهانو او هنرمندانو هر اړخيز ملاتړ تر لاسه کول د وخت يو کلک لومړنی ضرورت دی. له لويه خدايه ښاغلي ګورنر صاحب سيد افتخار حسين شاه، تاسې خور او ستاسې د ټولنې اغېزمنو ملګريو هر يو: ډاکټر شېرزمان "طايزی"، شېرشاه "ترخوی" ډاکټر زلمی "شهريار" او نورو ته د لا پسې اغېزمنو ګامونو د پورته کولو توفيق غواړم.
په پای کې دغه ټکی هم يادوم، چې: که چېرې په خپرنيزو چارو کې د پښتو واحد ليک دود مراعت شي او همدارنګه د انګليسي نومونو د ليکلو سره جوخت د پښتو نومونه هم وليکل شي، ډېره به ښه وي، لکه هسپتال سره "روغتون"، يونيورستي سره "پوهنتون" او داسې نور.

*روغ، هوسا، بسيا، نېکمرغه او بريالي اوسئ.*
*ستاسو ورور*
***مبارز "څاپې" بن، جرمني 10/8/2002***

***

# د ښاغلي عطامحمد "شېرزي" د ستر ګو ليدلي حالاتو پر کتاب څو خبرې

د 1357 هجري لمريز کال د غويي "ثور" په پېښه کې، چې کيڼ لاسو په قهر آمېزه توګه په افغانستان کې واک تر لاسه کړ. زه په لغمان کې بندي شوم، کله، چې له بنده ووتم، بغلان ته لاړم، په بغلان کې زما د پخوانيو دوستانو له ډلې نه يو کيڼ لاسی د ولايت د مستوفي په توګه ټاکل شوی و هغه، چې زما له راتګ څخه خبر شو، زه يې مېلمه کړلم، کور ته يې ورغلم، په کور کې يې د مور او پلار نه سربېره خويندې او ورونه هم ورسره وو. د خبرو اترو په ترڅ کې يې له ما نه وپوښتل، چې بهر ولس زموږ په هکله څه وايي؟ ما ورته وويل: د خلکو تر منځ ګنګوسې دي، چې روسان به ډېر ژر پر افغانستان راودانګي، خلقيان به وټکوي او پرچميان به د واک پر ګدۍ کښېنوي، لکه څرنګه، چې په بخارا کې پېښه شوه، په هماغه توګه به روسان پر افغانستان هم واکمن شي.

هغه راته بې له کومه ټاله وويل، چې: دا د دښمنانو له خوا دښمنانه پروپاګنډه ده.

د هغې شپې له مېلمستيا نه دا درويشت کاله تېر شوي دي، هغه مستوفي هم نور ژوندی نه دی؛ خو څه، چې د 1357 کال نه را په دېخوا پېښو سره په سرو ښودله او څه، چې ګران لوستونکي د درانه ښاغلي عطامحمد خان "شېرزي" د ستر ګو ليدلو حالاتو په دې ليکلي شوې ټولګې کې لولئ، زما د هغې شپې هغې کټ مټ رښتياوالی ښيي، چې هماغسې په افغانستان کې په پرله پسې توګه را پېښې شوې. بدمرغي په دې کې ده، چې زموږ ولس تل د خطر زنګ د خطر د پېښېدو نه مخکې وهلی دی؛ خو پر ولس واکمنې ډلې خپل غوږونه کاڼه اچولي، يا دا، چې پرې هېڅ نه دي پوهېدلي.

په هر حال ما، چې خپل ښی او کيڼ لاس پېژندلی، په ګران هېواد افغانستان کې راته د تاريخ ډېره توره څېره د شاشجاع څېره ښکاره شوې وه؛ خو ددې ټولګې د محتوياتو په مخ او همدارنګه په کال 1371 هجري لمريز کې، چې پر افغانستان کوم مصيبت واکمن شو، او بيا د افغانستان دا نننې حالات، چې د امريکايانو او د هغوی د متحدينو ځواکونو په ډاګه کړي ښکاروي، چې:

اوس به خاندي شاه شجـــــاع
پـر ببرک او ظاهر شـــــــــــاه

يعني شاه شجاع به پر ببرک کارمل خاندي او وايي به، چې: که زه د انګريزانو د پوځونو په زور پر افغانستان باچا شوم، خپل عمل مې خيانت وګاڼه او ځان مې خپل ولس ته وسپاره؛ خو ته، چې د روسانو پر ټانکونو سور افغانستان ته راغلې او واکمن شوې، خپل دغه خاينانه عمل ته دې د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې انقلاب وواېه څو، چې د روسانو په لمنه کې دې د کمونستانو ستر مشر "لېنن" ته ساه و بخښله.

همدارنګه شاه شجاع به پر ظاهرشاه هم خاندي، او وايي به، چې: که زه د انګريزانو د پوځونو سره

راغلم، د باچا په مرتبه کې وم. مګر ته، چې د امریکایانو او د هغوی د متحدینو په زور راغلی یې "د بابای شورای نظار " په درجه کې شوې؛ نو په دې توګه زه تر تا ډېر سپین یمه. یعنې ما د انګرېزانو په زور پاچاهي ګټلې وه؛ خو تا د امریکایانو په زور د "بابای شورای نظار " درجه وګټله.

## د پای ټکی:

د افغانستان د معاصر تاریخ د لیکلو په چارو کې په دې اند ، چې: د یوه هېواد د سیاسي پېښنو په هکله په ریښتینه توګه مورْخین دي، چې قضاوت کولی شي. ښایي د افغانستان ریښتینو مورْخینو ته د ښاغلي شېرزي صاحب دغه د سترګو لیدلي حالاتو لیکل شوې ټولګه به یوه باوري سرګټه وګڼله شي.

**په درنښت**

**مبارز "څاپې "بن، جرمني.**
**14/11/2002**

بلن لیک

ګرانه او عزتمنده !

السلام علیکم ورحمآ الله وبرکاته !

د ډیورنډ کرښې د جنوبي آسیا او په خصوصي ډول د پښتون/ افغان قوم په تاریخ، کلتور او اقتصادي سیمه ییز انډول باندې ډېر ژور اثر غورځولی دی. او اوس هم پښتون/ افغان قام ددغې کرښې د منفي اثراتو تر مخه په څلورو ټکړو تقسیم پروت دی. د ډېر افسوس خبره داده، چې پښتون/ افغان قوم تر ننه پورې ددغو منفي اثراتو جوت احساس نه لري.

موږ هم ددغه احساس د را ژوندي کولو لپاره د اکتوبر 15 او 16 په پېښور پرېس کلب کې دوه ورځنی کانفرنس رابللی دی. تاسو ته په دې کانفرنس کې د شرکت او خپلې رایې د اظهار دعوت درکوو.

هیله ده، چې د قومي ارزښت په دې مسئلې باندې به موږ ته د تعاون لاس راکړئ او خپل ګډون به یقیني کړئ.

ستاسو د ځواب په طمع
محمد افضل خان
مرکزي صدر، پښتونخوا قومي پارټۍ
درشخېله. کال: 2003
فون نمبر: 5958333- 0936

## *درونډ مشر نباغلی محمد افضل خان لالا !*

هیله ده روغ، جوړ، هوسا ، بسیا ، نېکمرغه او بریالی واوسې. د لوی خدای(ج) په دربار کې دعا کوم، چې تا دې موږ ته ډېر کلونه نور هم ژوندی ولري.

زموږ مشره ! د ډیورنډ د کرښې په هکله ستاسو له خوا تجویز شوی پرېس کانفرنس ته بلن لیک را ورسېده. ماته له وجایبو څخه وه، چې په دې کانفرنس کې مې برخه اخیستې وای، او د خپلو مشرانو حکیمانه وینا وې مې اورېدلې وای؛ خو په خواشیني سره باید عرض وکړم، چې د ژوندانه د ځینو راپېښو شویو معاذیرو له مخې بریالی نه شومه، چې دغه وجیبه ادا کړمه.

له دې امله د خپلې ناسوبتیا د ښبخنې له غوښتنې سره جوخت د ډیورنډ د کرغېړنې کرښې په هکله د کانفرنس برخه والو ته خپل پیغام په لاندې ډول وړاندې کوم او د هغوی بری غواړم:

زموږ په سیمه کې د زمانې له ظالم، جابر او استکبار نه راپاتې یوه هم د ډیورنډ کرغېړنه کرښه ده، چې یو واحد ولس یې په ځو ټوټو وېشلی دی. څرنګه، چې خان لالا هم انګېرلې، په هماغه توګه دغې کرښې ډېرې سیمه ییزې ناروا او ناجایزې اغېزې هم له ځانه لرلې دي، چې له هغو اغېزو نه یوه دغه هم ګڼلی شو: په افغانستان کې ډېره موده کېږي، چې د اسلام او دیموکراسۍ په نومونو هلې ځلې روانې دي، خو د افغان له خولې نه پښتو ژبه وباسي او په بدل کې ورته په خوله کې پارسي ژبه ورننباسي. په همدې توګه په پاکستان کې هم د اسلام په نوم د پښتون/ افغان قوم له خولې نه پښتو ژبه وېستله کېږي او په بدل کې ورته په خوله کې د اردو ژبه اېښودل کېږي. دغه پښتون/ افغان قام سره دښمنانه چال چلند ، چې په ډېر زور او شور سره لا هم روان دی، د همدغې کرغېړنې کرښې د ناروا او ظالمانه اغېزو څخه شمېرل کېږي. تر څو ، چې دغه کرښه پرته وي، او په دې توګه د پښتون/ افغان قام په ځو ټوټو وېشلی پاتې وي، تر هغو پورې به هم د پښتون/ افغان قام د ژبې او فرهنګ سره دښمنانه چال چلند روان وي. دا ، چې لوی خدای(ج) په خپلې حکیمانه ارادې سره لومړی پښتو ژبه خلق او بیا ورته پښتون/ افغان قام ورپنځولی دی، ځو د پښتو ژبې ویونکي و اوسي؛ نو که ځوک د پښتون/ افغان قوم د ژبې، ژوند او ژواک سره دښمني کوي، هغوی د لوی خدای(ج) د حکیمانه ارادې دښمنان هم دي، که دا د اسلام په نوم هم وي.

ددغې خبرې پر بنسټ او دا ، چې پوهان وایي: په اتفاق او یو والي کې ژوند پروت دی؛ خو په بېلوالي او بېلتانه کې مړینه. غوره به وي که د پوهانو د ارشاداتو په رڼا کې د بېلتانه د بیدیا له تورتم نه د یو والي د ښار د روښانه ژوند په لور روان شو ، ځو زموږ راتلونکی پښتون/ افغان قام د یو والي او اتفاق له خوږو نه برخه من و اوسي. که داسې نه کېږي؛ نو د تل لپاره به لکه د تېر په څېر د بېلتانه د بیدیا د برېوکیو په څپو کې ورک او نابود پاتې یو.

د یو والي د ښار په لور د ستاسو د یون د بري په هیله

مبارز "څاپی" بن، جرمني.

**1/10/2003**

# ملګري ملتونه، لويه جرګه

# او

# اساسي قانون

دا خو دويارۍ خبره ده، چې د افغانانو تاريخ د جرګو او مرکو کور دی او لويه جرګه د افغانانو د پرېکړو خورا ستره عنعنوي مرجع ګڼله کېږي. دغه دود او دستور، چې له پېړيو راهيسې د يوې خورا منلې عنعنې په څېر پر افغانانو درنښت لاره، داسې ښکاري، چې د عيسوي ميلادي 2001 کال د سپتمبر د مياشتې د يوولسمې نېټې د ناوړو پېښو نه را وروسته او د امريکايي ځواکونو له خوا د طالبانو د اسلامي امارت د ړنګولو سره جوخت د ناوړه ملنډو او سپکاوي سره مخ شوې ده. د مثال په توګه په عيسوي ميلادي 2002 کال کې د اضطراري لويې جرګې په نامه په کابل کې د يو شمېر ايلا جاري وګړو له خوا د ملګرو ملتونو په سر پرستۍ يوه غونډه جوړه شوه او څومره، چې د لويې جرګې د دښمنانو له لاسه کېدله، هغومره يې دغه درنه جرګه سپکه او بې ارزښته کړله، چې افغانانو لا څه، چې نړيوالو هم په خپلو غوږونو واورېدل او په خپلو سترګو يې وليدل.

لکه څرنګه، چې ملګرو ملتونو د بن د پترس برګ په غونډه کې له افغانانو سره جفا وکړه، په هماغه توګه يې په اضطراري لويې جرګې کې هم خپله جفا تکرار کړله، چې وروسته بيا پښېمانه شول؛ خو په خواشينۍ سره دادی بيا هم وليدل شول، چې ملګرو ملتونو پر هماغه پخوانۍ لياري تګ پيل او په کابل يې د 2003ع کال لويه جرګه د يو شمېر پېژندل شويو ټوپک والاوو او جنګي جنايت کارانو د رابللو سره جوړه کړله.

ددې لويې جرګې او د اضطراري لويې جرګې تر منځ توپير دغومره و، چې يو شمېر زياتې مېرمنې ورته رابلل شوې وې نور؛ نو هماغه غر و او هماغه کربوړی. د لويې جرګې دوديزه عنعنه نه وه رعايت شوې، د ولس مخور کسان لکه ولسي مشران او ولسي قانون پوهان ورته نه وو رابلل شوي، او که د ګوتو په شمېر څو کسان رابلل شوي او راغلي وي، هغوی ته؛ خو هېڅ واک نه و، چې د خولې کومه خبره يې هم کړې وای. لکه څرنګه، چې نړيوالو اژانسونو په خپلو خبرونو کې څرګندې کړلې، دغه دواړه په نامه يې لويې جرګې په تهديد، تخويف، تطميع او سياسي پټو معاملو پيل او هم په تهديد، تخويف، تطميع او سياسي پټو معاملو سره پای ته ورسېدلې.

افغانان لکه څنګه، چې د بن له غونډې نه خواشيني او مايوسه پاتې شوي وو، په هماغه توګه له په نامه اضطراري لويې جرګې څخه هم مايوسه شول. او دادی په دې درېيم ځل د کابل د اساسي قانون د لويې جرګې له خوا هم مايوسي او پرېشانۍ ته وسپارل شول. دا په دا، چې په دې جرګه کې، چې کولای شو هغه د دوديزې لويې جرګې سپکاوی وګڼو، لکه څرنګه، چې د ځينو پر ولس او وطن مَينه وکيلانو غوښتنې وې، د جنګي جنايت کارانو، ملي خاينانو او د ولس او دولت د مالونو او جايدادونو د لوټ

مارانو د پوښتنې او محاکمې په هکله کومې پرېکړې ونه شوې. د دغې لويې جرگې په نامه، چې کومې د اشخاصو پټې سياسي معاملې او تفاهمونه د کاغذ پر مخ راغلي، هغه د جرگې د وکيلانو د خبرو او څېړنو تومنه او پانگه نه گڼله کېږي. دا او د اسې نورې غټې غټې نيوکې شته، چې د جرگې مشروعيت تر پوښتنې لاندې راولي او د لويې جرگې په نامه د اساسي قانون متن حقوقي ارزښت او اعتبار ته زيان او تاوان رسوي. افغانانو لکه څرنگه، چې پخوا تر دې د پرديو امرونه او هدايات نه دي منلي، په راتلونکي کې هم جوته خبره ده، چې د چا په نغوته او سپارښت خپلو ملي گټو ته شا نه شي اړولی. په دې توگه لکه څرنگه، چې د ملگرو ملتونو د سولې پلان د بن په غونډه کې ناکامه شو، په هماغه توگه د هغوی د سولې هلې ځلې د کابل په اضطراري لويې جرگې کې هم بې نتيجې پاتې شولې. او اولس د پخوا په څېر د ټوپک والاوو او جنگي جنايت کارانو په يرغمل کې پاتې شو. دادی دغه په کابل کې د اساسي قانون د تصويب لويه جرگه هم لکه څرنگه، چې په تهديد، تخويف، تطميع او د اشخاصو په پټو سياسي معاملو پيل شوې وه په هماغه توگه د يوې ستړې اختناقي فضا په سيوري کې د ناوړه سياسي معاملو سره پای ته ورسېده، چې د افغانانو د دوديزې لويې جرگې سره يې هېڅ اړخ نه لگاوه.

په پای کې بايد ووايو، چې د داسې جرگو د پرېکړو د پيل کېدو چانس ډېر لږ تر ستر گو کېږي. دا ځکه، چې ولس د پخوا په څېر د جنگي ډلو ټپلو په يرغمل کې پرېښودل شوی، او په وطن کې د امنيت او ډاډ بېني غم هم هېڅ نه دی خوړل شوی. پر دې سربېره د ولس له خوا دغه اساسي قانون ته هم د تهديد، تخويف، تطميع او د سياسي معاملو د قانون نوم ورکول کېږي، چې په دې توگه د قانونيت ارزښت ته يې ډېر زيات تاوان رسېږي.

**مبارز "څاپي" بن، جرمني**

**6/1/2004**

*پرانستې ليک:*

# د ډيورنډ د کرښې په هکله

*د بي بي سي پښتو پروگرام ته!*

ډيورنډ د زمانې د غاصب مامورو، د غاصب د کرښې له امله د افغان ولس دوه ټوټې شوی؛ خو ولس دغه کرښه په دې څه د پاسه يوه پېړۍ کې هم هېڅکله ونه منله. او س يې هم په هېڅ توگه څوک نه مني. که څېرې او سنۍ په کابل کې ناسته واکمنه ډله دغه کرښه په رسميت وپېژني، د دوی دغه کار هېڅکله او په هېڅ توگه قانوني او حقوقي بڼه نه لري او د منلو وړ نه دي. ځکه، چې:

1. دغه واکمنه ډله د ولس له ملاتړ نه بې برخې ده.
2. دغه واکمنه ډله د بهرنیو ځواکونو له خوا کابل ته راوستل شوې.
3. ددغې واکمنې ډلې ساتنه لا تر اوسه پورې د بهرنیانو د ځواکونو له خوا کېږي.
4. په دې ډله کې هغه کسان دواک خاوندان دي، چې په پاکستان کې روزل شوي، او افغانستان ته صادر شوي دي.
5. په دې ډله کې ددې پر ځای، چې د افغانستان لوړو ګټو ته درناوی وشي، د ګاونډیو هېوادونو د ګټو پلوي کېږي.
6. دغې ډلې، چې د ملګرو ملتونو په مرسته او ملاتړ کومې لويې جرګې راغوښتې وې، په هغه کې د اختناق او تهدیدونو له امله د افغانستان د ګټو پلويانو ته که کوم یو و، ددې وسه نه وه، چې خپله خبره هم وکوي.

دا او داسې نور غټ غټ ټکي شته، چې اوسنۍ واکمنه ډله نه شي لا، چې حق هم نه لري د ډیورنډ د کرښې په هکله خبرو ته کښېني.

سربېره پر دې د حقوقي بنسټونو پر مخ هم یوه خبره، یو کار یا یوه موضوع، چې په یوه پېړۍ کې چا نه وي منلې؛ نو هغه به اوس څوک ومني؟ او څنګه به د منلو وړ وګڼل شي؟

زما په اند په دې هکله بیا په اوسنیو شرایطو کې، چې په افغانستان کې یو ملي، قانوني او د ولس له ملاتړ برخمن حکومت نه شته، هېڅکله او په هېڅ توګه ضروري نه برېښي، چې خبرې وشي، نه پوهېږم بي بي سي په دې هکله څه هدف لري؟ بي بي سي؛ خو دا شل کاله وشول، چې په خپلو دري، پارسي او تاجکي پروګرامونو کې لګیا ده وايي، چې: ایران، افغانستان او تاجکستان پارسي ژبي هېوادونه دي. آیا هغو افغانستان لیدلی یا افغانستان ورته ویلي دي، چې پارسي ژبی هېواد دی او که نه؟ په افغانستان کې؛ خو پارسیان د نورو لږکیو ډلو په ډله کې یو ډېر کوچنی اقلیت دی. ښه به دا وي، چې بي بي سي خپلې غلطۍ پرېږدي او نور افغانستان ته د پښتو ژبې هېواد ووايي. ځکه، چې افغانستان پښتنو جوړ کړی او پښتانه په افغانستان کې تر نورو ټبرونو نه لا هم یو غټ ټبر دی، چې د نوي اساسي قانون د تصویب په لویه جرګه کې هم په ډاګه شوه.

په خورا درناوي

جنوري 2004ع کال
مبارز "ځاپې" بن، جرمني.

# حرکت

د حرکت په نامه له حرکته ډکې د لومړنۍ خپرونې لومړنۍ ګڼې یوه ګڼه د درونـد مشر ښاغلي "حرکت" له خوا راکړله شوه، چې په خوښۍ او په مینه مې سر تر پایه ولوستله، د خوږو ګڼو او ګڼلو سره یو ځای ښې فلسفې او سیاسي مفاهیم او مطالب په کې ځای په ځای شوي او د حرکت او خوځېدنو تاندې هلې ځلې هم په کې ځلېدلې وې. دغه لامل و، چې زه یې وپارولم د حرکت د خپرونې د ستایوال په توګه څو ټکي د خوښۍ ملغلرې تویې کړم؛ نو لومړی مې د حرکت د توري په معنی د پوهېدلو لپاره د پښتو پښتو تشریحي قاموس پانې پرانیستلې او په **1680**یم مخ کې مې داسې ولوستل:

حرکت ***Harakat***: خوځېدنه، ښوربدنه، خوځي، د سکون ضد. د حرکت قانون "**فل**" وایي، چې: ټول نړیوال یو له بله سره تړلي او یوه مرتبطه واحده دستګاه ده. په همېشني حرکت او بدلون کې ده او هېڅ شی پر خپل حال نه پرېږدي. سکون او تغیر نه کول فقط ظاهروي. د همدې تغییر په اثر هېڅ مطلق او ابدي شی وجود نه لري. هر څه نسبي او تېرېدونکي دي. مکانیکي حرکت، بیولوجیکي حرکت، ټولنیز حرکت، فکري حرکت.

*انتقالي حرکت "جغ" ریوولوشن*: د ځمکې هغه حرکت ته وایي، چې ځمکه د یوه شمسي کال یعنې **365** ورځو **6** ساعتو **9** دقیقو او **11** ثانیو په جریان کې پر خپل بیضوي ډوله مدار باندې، چې د محیط طول یې **931** میلیونه کېلومتره دی د لمر په شاوخوا چورلي. د دغه حرکت په نتیجه کې څلور ګوني موسمونه پیدا کېږي او شمسي اعتدال او انقلاب پېښېږي.

*وضعي حرکت "جغ" / وتېشن*: د ځمکې هغه حرکت ته وایي، چې ځمکه په **23** ساعتونو او **56** دقیقو کې د لویدیز نه د ختیز و خوا ته پر خپل محور باندې وچورلي. د دغه حرکت په نتیجه کې شپه کېږي، ورځ کېږي او د وقتونو تغییر، د ځمکې په کره کې د سرعتونو تغییر، د بادونو د استقامت تغییر او د فرار قوه منځته راځي.

دا وه د حرکت د توري لغوي معنی او مفهوم. اوس به وګورو، چې د "حرکت" خپرونې په خپلې لومړنۍ ګڼې کې د حرکت له توري نه څه انګېرلي دي؟ دغې خپرونې په خپل لومړي مخ کې د "یادونې" تر سر لیک لاندې په یوه برخه کې داسې څرګنده کړې، چې:

حرکت په عالم اسباب کې د خدای(ج) د لوی علم د عامې قانونمندۍ او د هغې د ټولو خصوصي حالتونو په پروسه کې د ټولو پدیدو د ظهور او متقابلو اړونده مناسباتو د علت او معلول سبب ګڼل کېږي. دا لوی جهان موجود دی ځکه، چې متحرک دی او متحرک دی ځکه، چې موجود دی.

متفاوت، رنګا رنګ او متغیر دی. دا جهان هغو مره ابدي دی لکه څو مره، چې حرکت ابدي دی. لوی خدای(ج) د خپل لوی علم د عامې قانونمندۍ له مخې د لوی جهان او حرکت متقابل ابدیت او موجودیت یو تر بله سره لازمي ابدي علت او معلول او همداسې قایم بالذات او خلل نا پذیر ګرځولی او یوازې د قضا او قدر د لوی علم د جبر او اختیار له مخې په هغې کې تغییر او تصرف ممکن ګڼل کېدی

شي.

د حرکت ددې يادونې په يوه برخه کې د سياسي لوري په هکله هم لولو، چې: مور د غه ډول ټولې پديدې نسبي ګڼو؛ نو ځکه د لومړۍ ورځې څخه وايو، چې: مور هېڅکله بې طرفه نه يو.

هو! حرکت هر کله خپل لوری او خپله خوا لري او همدغه لوری او خوا د حرکت په حرکت کې د پايښت او تسلسل لامل ژوندی ساتلی دی. لکه، چې د نړۍ په ابديتوب کې وينو که ذره له حرکته پاتې شي، که شمال ونې او بوټي ونه خوځوي. که د لمر وړانګې ونه ځلېږي، که وربځې ونه وروي، که اور لمبه ونه کړي، که هوا ونه چلېږي، که زړې زرغون نه شي او که د انسان او حيوان په بدن کې سا ودرېږي؛ نو هر څه به پای ته رسېدلي وي. همدغه خبره ده، چې وايو: حرکت کې برکت شته او برکت د ډېرښت، د ښېګڼې او پايښت نښه ده.

خوځېدنه، هلې ځلې، پاڅېدنه. زغاسته، انګېرنه، کړنه او وېينه. دا ټول په حرکت کې نغښتي او حرکت د لوی خدای(ج) د پنځونې د قدرت له نښو څخه شمېرل کېږي. لکه، چې د کوچني انسان په بدن کې سا غوټې وهي او ځي راځي.

لکه، چې وايي:

چې غوټې پسې وهي په لاس به در شــــــي
چا ويل چې پـــــه درياب کې ګوهر نه شته

ما د حرکت د خپرونې په تل کې د سمندر د تل په څېر ډېرې ملغلرې وليدلې، ښايي د ژوندانه د سمندر د ماڼو ګانو ورته پام شي او د هغو د راوښستلو لپاره په حرکت راشي او په پرله پسې غوټو وهلو د ژوند ښکلې ملغلرې ددغه سمندر له تل څخه راوباسي.

**مبارز "څاپی" بن، جرمني.**

**26/6/2000**

# د ماخذونو فهرست

## د کتابونو نومونه

| ګڼه | د کتابونوم | ليکوال | د چاپ ځای |
|---|---|---|---|
| 1. | د قرآن کريم پښتو تفسير | | مکه مکرمه سعودي عربستان |
| 2. | د اريانا دائرآ المعارف پښتو | د افغانستان د اريانا د ائرآ المعارف ټولنه | کابل |
| 3. | پښتو - پښتو تشريحي قاموس | د علومو اکاډيمي کابل | کابل |
| 4. | استعمار او ناسيوناليزم | نباغلی استانه ګل "شېرزاد " | پېښور |
| 5. | د دعوت خپرونه | خپرونکی نباغلی طارق "بزګر" | ناروې |



مبارز ځاپی

مبارز ځاپی اصلاً د لغمان ولایت د الیشنګ د ولسوالی اوسېدونکی دی، چې بیا وروسته یې د بغلان په ولایت کې استوګنه غوره کړه. نوموړي د هېواد په مختلفو اداري ځانګو کې کار کړی دی. وروستی ماموریت یې د لغمان ولایت د اداري مدیر په حیث سرته رسولی دی.

د ۱۳۴۱ هـ ش کې یې شعر و شاعري پیل کړې، ژوبل احساس یې د هجرت او پردیسۍ ژوند لومړی، ګلپاڼه یې دویمه او زرپاڼه یې دریمه شعري مجموعه ده. په ۱۳۵۷ کال پېښور ته مهاجر شوی او د څه وخت د تېرولو وروسته جرمني ته تللی، چې لا تراوسه پورې په جرمني کې اوسي.

چاپ چارې: د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه
Tel/Fax:+92-91-2564513/E-mail:danish2k2000@yahoo.com